

# کندهار



صدراعظم ښاغلی نوراحمد اعتمادی دهیواد په مرکزی سیمه کی په خپل وروستی سفر کی دبامیان دولایت دپنجاب ولسوالی دبنسټ ډبری ایښودلو په محفل کی دهغه ځای دخلکو سره دنژدی ځخه خبری کوی .

# کندهار مجلې د لوستونکو سره وداع

د هغې پېرزوینې او مهربانۍ له مخه چې د اطلاعاتو او کلتور وزارت او د دولتي مطابعو ریاست زما په هکله څرګنده کړه او زه ئې د کندهار د مطبعې د مدیر په حیث مقرر کړم خوښي او منته کوم، او ځکه چې وروسته تردې



زلمی «بارک»

زما رسمي ارتباط د مجلې څخه ختمیږي نو غواړم چه د کندهار د مجلې د ګرانو لوستونکو سره مخه ښه وکړم

د کندهار مجله چه د هیواد په دې تاریخي ولایت کې خپرېږي د طلوع افغان د درنې ورځپاڼې ترڅنګ د خلکو د تنویر په لاره کې خدمت کوي او غواړي چې په خپله میاشتنۍ خپرونه کښې د کندهار د تاریخ، ملي کلتور او ادب د معرفي کولو په لاره کښې ستره برخه واخلي .

ما چې درې کاله او شپږ میاشتې د مجلې د مدیر په حیث دلته تیر کړه که څه هم د وسایلو

پاته د پښتي په ۳ مخ کې



د ۱۳۴۹ لمریز کال د کب میاشت

## موږ باید خپله ټولنه

### د پرمختګ پر سالمه او بهترینه لاره بوزو

ګران وروڼه خبر دي چه په دې ورځو کښې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت په صوابدید د هغې سابقې له مخې چه د کندهار د مجلې مدیر ښاغلي زلمي بارک په طباعتي چارو کښې درلوده د دغه ولایت د مطبعې د مدیر په حیث مقرر شوی او د مجلې د مدیریت نشراتي او اداري چارې د بل چلونکي تر مقررېدو پورې ما ته راسپارل شوې دي .

د کندهار غوندې په تاریخي او مهم ولایت کښې چه دوې پېړۍ پخوا د هیواد د سیاست، کلتور او اقتصاد مرکز و او اوس هم د کابل نه وروسته د هیواد لوی ولایت دی د کلتوري چارو وارسي اخبار لیکل د مجلې چلونه، د دغې لارې نه د خلکو په تنویر او راویښولو کښې سالمه مبارزه د یوې خوا ډېره حوصله، پر له پسې کوښښ، فداکاري، ځان وقفول او د بلې خوا هوښیاري، واقع بیني، د خلکو او هیواد اوسني شرائط په نظر کې نیول او د پوهانو او لیکوالو معنوي همکاري او کلکه ملګرتیا غواړي

زموږ د ټولنې معنوي رشد او مثبت تحول، اصلاح او د چارو



غلام محی الدین [ایوبی]

پرمختګ چې زموږ ټولو هیوادوالو ملي هیله او سپیڅلې آرزو ده د دغه حرکت او نهضت که د خلکو د ذهني او عیني شرایطو چمتووالی د ځوانانو لوړ عزم صادقانه فعالیت کوشش او فداکارۍ غواړي نو له همدغه کبله اجتماعي حرکت او ملي نهضت محسوس هم نه دی او هر څوک نه شي پوهیدای چې مثلاً زموږ ټولنه څومره پرمخ تللې او د ارتقا په کوم پوړ کې قرار لري.

لکه چې د یوې ونې یا نبات وده او لوئیدل څوک په سترګو نه شي لیدلای خو یوائځې دومره پوهیږو چې د ټاکلې مودې په تیریدو سره یو نبات او یا ونه لویه شوې او ثمر ورکوي دغه رنګه د ټولنو په اجتماعي حرکتونو او شعور په وده او معنوي رشد هم څوک نه پوهیږي یوائځې اجتماعي

پاته د پښتي په ۳ مخ کې

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین [ایوبی]

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹
دیوولسم کال دوولسمه ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۳۶

کالنۍ بیه

په کندهار کې [۴۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کې [۳۲] د

په باندنیو هیوادو کې یو ډالر

د کب میاشت
۱۳۴۹ لمریز کال

## ددې ګڼې مضامین



د کندهار دولتي مطبعه

# فعالیت
# او
# بیکاري

کار، حرکت، فعالیت د کائناتو په ټولو اجزاؤ او مظاهرو کښې لیدل کېږي. انسان چې د کائناتو په دې لویه کارګاه کښې یو شهکار مخلوق بلل کېږي، هم مجبور دی چې د طبیعت دا قانون پرځای کړي او که چېرې دې قانون ته د زړه له اخلاصه غاړه کښېښود له شي نو طبیعي نوامیس ټول هغه شیونه او ارادې له مینځه وړي کوم چې د طبیعت د غوښتنو سره برابر نه وي لکه چې یو شاعر وائي:

موجیم که آسودگی ما عدم ما است
ما زنده بر آنیم که آرام نه داریم

وختې چې دا خبره ومنل شي چې کار او فعالیت په ټول کائناتو کښې یو فطري امر او څرګند حقیقت دی او د ژوند حقیقي معنی او تعریف هم کار او فعالیت ته ویل کېږي.

که چېرې د فعالیت مزې کمزوري شي نو د ژوند تار هم سم ورسره شلېږي؛ خو انسان په ژوندانه کښې په تش کار کولو او حرکت سره مکلف او مجبور نه دی، بلکه څرنګه چې

انسان یو معقول او مفکر موجود دی باید د کار کولو سره نیت او منظور هم ولري او دا هدف او منظور باید د عقل موازین او د فکر اساسات هم ومنلی شي.

لکه څرنګه چې وچه بیکاري له طبیعي ناموس څخه مخالف کار دی، د غه رنګه بېله تعقل او هدف ټاکلو څخه کار او فعالیت کول

هم انساني عمل نه شو بللای، خو موږ کار او بیکارۍ ته په اجتماعي نظر ګورو او غواړو چې د انسان په معاشي او اقتصادي ژوند کښې د کار قیمت او د بیکارۍ ضرورونه وښیو او دا واضحه کړو چې کار د ټولنو په ارتقائي سیر او بیکارۍ د اولسونو په انحطاط کښې څه تأثیر لري.

موږ د مخه کار د انسان دپاره یو طبیعي امر وباله او د کار سره مو و یوه معقول منظورته د انسان دپاره هم اشاره وکړه نو ځکه موږ هغه کار ته کار ویلای شو چې په هغه کښې اقتصادي تولید او مدني ګټه پرته وي.

د کار له محصول څخه انفرادي ډیګر تیا بشپړه او اجتماعي شئون او حیثیت هم وساتل شي او داسې کار باید ونه شي چې په هغه

کښې د نورو انسانانو شرافت او اقتصاد ته صدمه ورسول شي، څرنګه چې شرافت او اقتصاد د جامعي مشترك مال دی نو هر هغه

زیان چې انسان ئې د کار په کولو و نورو افرادو ته رسوي ګواکې په حقیقت کښې

و خپل ځان ته تاوان او زیان رسولی دی ځرنګه چې یو شاعر وایي:-

هر که بر آینه خنجر می کشد
بر خویش خنجر می کشد

ځکه چې دغه مضر انسان هم د جامعې غړی دی ځرنګه چې په انساني وجود کښې د یو غړي په درد سره ټول بدن ناسازه کیږي، دغه رنګه د افرادو په نامعقولو حرکتونو سره هم د ټولې جامعې پیکر جریحه‌داره کیږي چې دا خوږ بېله پوهو کسانو بل څوک لیدلای نشي او نه دا درد هر څوک محسوسولای شي

ځکه نو د جامعې اکثره خلک ودې خوږ ته د بې پروائی په نظر ګوري، او په اصلاح یې نه پسې کیږي .

او که چیری د یوې جامعې ټولو افرادو دا درد حسولای سوای نو بیا نه دومره فکري اختلافات او اقتصادي بې عدالتي مینځ ته راتلې، او نه دومره شخړې او جنجالي مسئلې دیوې ټولنې د افرادو تر مینځ پېښېدلې ؛ د مینې او عدالت پرشتې به هر ځای خپل وزرونه غوړولي وای او انسانانو به ددې وزرو په سایه اود انسانیت په غېږ کښې خپل انساني وجایب پرځای یول ؛ بېکاري هم په یوه جامعه کښې د اقتصادي بې عدالتۍ نمونه ده او نتیجه یې کمزورتیا، فتنه انګیزي او وران کاري وي، چې دا وضعیت بیا د جامعې پر عمومي وضعیت سخته اغیزه اچوي اود یوه مملکت اقتصادي بنیه کمزوري کوي؛ ځکه مونږ دغه بېکاران په لوی سر کښې بېکاره بللای نشو

او نه بېکاري ته چې ضد د کار دی قایل یو خو وران کاري اخلاقي مفاسد، طفیلي ژوند ټول هغه علتونه دي چې ددې ټول بېکاري څخه زیږي چې پر هغه باندي اقتصادي منفعت او مدني ګټه نه وي بنا او که چیري د بېکاري سره جهالت هم ملګری سي، نو دا د اجتماعي ژوند د خرابتیا دپاره ډېر مؤثر عوامل ګڼل کیږي چې له ډېري زمانی لپاره یې په ډېر زیار او کوښښ سره ریښې نه ایستلی کیږي او یوه جامعه د داسي نیګړتیاؤ په درلودلو سره د ترقۍ او نهضت خاوند او مالك کېدلای نشي نو یوې هوښیاري جامعې ته په کار دی چې له خپل ملك څخه بېکاري او ناپوهي ورکه کړي.

ا،م «کرزی»

---

نثار احمد «رمیا»

# د نړۍ مشهور وګړي

«آبانو پیترو»

یو ایټالوی فیلسوف او طبیب دی؛ دغه سړی د ۷ هجري څخه تر ۱۳ ع پېړۍ پوري د ډېرو نومیالیو طبیبانو څخه ؤ، چې په ۱۲۵۰ کښې زیږېدلی او په پاریس کښې یې د فلسفې او طب تحصیل کړیدی، وروسته یې په پاروا کې هستوګنه غوره کړل او په اجتماعي خدمت یې پیل وکړ، په لږ موده کښې یې نوم دومره خپور شو چې سیالانو سترګې پر ورني کړې او پروپاګند یې وروپسې کړ وه چې «آبانو پیترو» د خلکو د معالجې سره سم سحر او نجوم ګري هم کړي، ددې خبرې په اثر دوه واره تر محکمې لاندي ونیول شو، خو دوهم پلا محکمه یې پای ته نه وه رسېدلی چې مړ سو .

آبانو پیتر دخپلو لیکنو په سبك کښې د ابن رشید او نورو عربي لیکوالو د لیکنو پر لاره ډېر زیات ګامونه اخیستي دي.

# سبک څه شی دی او د لیکنې مهم اساسات کوم دي؟

د لیک و یوې معلومې طریقې ته سبک ویل کېږي؛ یا په بل عبارت د تویو او ترکیب او د الفاظو ټولو ته سبک وائی، معلومه ده چې ذوق، سلیقه، طرز تفکر او ځینې داسې نور عوامل لکه اخلاقي او روحي خصوصیات پر سبک یعنې د لیکلو پر طرف باندې پوره اغیزه ښندی.

د پورتنیو مختلفو عواملو له کبله سبکو تعداد مختلف او د لیکوالکـــــو د تعداد سره مساوي دی، ځکه نو که د یوه لیکوالکې لیکنه د انشأ د قواعدو او د لیک د قوانینو په موافق وي د هغه لیکنه په ښکاره د یو ښه خوند او تاثیر در لوونکې وي؛ دا خبره چې بعضې لیکوونکي د پر وطرفدارانو در لوونکي او ځینې بیا هیڅ نلري او لیکنه ئې بې تاثیره وي فقط د هغه د بیان او لیکنې په طرز پورې اړه لري.

د یوه لیکوونکي شخصیت فقط د هغه د سبک له رویه معلومولای سو مثلا ځینې لیکنې خوښېدونکې او ځینې نوري بیا بې روح خسته کنه او وچې وي چې د ویلو په وخت کښې بې تاثیره وهوا ته خوشې کېږي.

هیڅ اثر نه ښندي چې دا وروسته ډول لیکنې د یو غیر مترقي او ساده سبک نمایندګي کوي ښه د سبکو او بیان د طرز څخه هغه دی چې د طبیعت سره موافق وي لکه «والټر» چې وایي هغه څه چې ویل یا لیکل کېږي هغه تر حقیقت لېږد توجه وړ وي.

د دې لپاره چې زموږ لیکنې خوندوري وي باید لیکوونکي د طبیعت ولمنې ته لاس واچوي او د خپل زحمت او کار په وسیله ئې تقویه کړي.

زموږ ځینې لیکنې ډېرې مغلقې او پیچیده وي چې د ټولو د خوښې باعث نه ګرزي ځکه نو د مغلقو جملو او ډېرو لغاتو استعمال هم ښه نه دی.

لکه چې د یو هانو څخه یو یوه وایي:

« الهام د ښه لیکلو په ساده لیکنه کښې دی ».

یو لیکوونکی نسي کولای چې ټول هغه حقایق چې ذاتاً په یو شي کښې پراته وي اظهار کړي او وئې لیکي.

مګر بیا هم د کوښښ او لـوړو آثارو د مطالعې په وسیله کولای سي چې کراو کرار و هغه ته ځان نژدې کړي.

موږ څرنګه کولای سو چې په لیکنه کښې د یوه ښه سبک خاوندان سو؟

لکه چې پورته ذکر سول دراودل د یوه ښه سبک د لیکلو په قریحه طبیعي استعداد او توانائي پورې اړه لري، مګر کار او کوښښ په دوهمه مرحله کښې د هغه واقع کېږي.

په دې ډول که یو شخص د لیکو د یوه

« ۵ مخ ته دې وکتل شي»

مترجم (حمیدی)

# د طب د پیدایښت
## تاریخچه

په دې باره کې چې د طب پوهنه له کوم وخت څخه تاسیس شوې او انسانان په بوخت شوي دي د پوهانو خبرې سره بېلې دي، یو څه وایي او بل بل څه چې څېړنه او غور په کښې بیله حیرت او سرګرداني څخه بله نتیجه نه لري ځینې مؤرخین وایي دا دې علم کشف کلدانیانو

کړی دی او هغوی منځ ته راوستلی دی چې ځینې ئې د یمن جادوګرانو ته منسوبوي او ځینې ئې بیا پیدا کېدل د پخوانی یونان له پوهانو څخه بولي، یوه برخه ئې بیا د مصر کاهنانو ته منسوبوي.

کلدانیان لومړنی قبرو چې د ناروغیو په باره کې ئې بحث وکړ دوی به خپل ناروغان یوه داسې ځای «روغتون» ته وړل او هلته به ئې غزول چې د خلګو تګ او راتګ به ډېر وو چې دا ځای به مخصوص د ناروغانو د پاره جوړ شوی وو او خلک به ئې پوښتنې ته هوری ورتلل.

کوم لاروپان چې به د ناروغ له څنګ سره تېرېدل دده پوښتنه به ئې هم کوله او که به بل څوک دده د ناروغۍ په شان مریضی اخته شوی وو او بیا به بېرته ښه شوی وو د خپلې جوړېدو

علتو نه به ئې ناروغ یا د هغه پرستار ته ور ښوول او د دوی تجربې به پر مخصوصو تابلو ګانو باندې چې د دې کار د پاره به ځړول شوې وې لیکل کېدې.

لدې کبله ویلای شو چې طبابت یو فن دی چې د زاړه کلدان د وګړو له خصوصیاتو څخه بلل کېږي او نورو قومونو زړه پورې او په هغو

کښې عربو له کلدانیانو څخه زده کړی دی. وروسته یونانیانو دا علم ترقیا کړلو قوانینو او قواعدو لاندې کړی، بیا بو به او فصلونه ئې ور جوړ کړل او په څو مبحثو پورې ئې منحصر کړه. له دوی څخه بیا فارسیانو او رومیانو طبابت په میراث یووړه.

د تاریخ له مخې لومړنی قوم چې طب ئې د بابل له کاهنانو څخه زده کړ قول عربان وه چې په شپږمه میلادی پېړۍ کښې ئې له فارسیانو او رومیانو سره راشه درشه درلوده.

ددې قولنې له نامتو کسانو څخه یو سړی ابن خدیم د تیم الرباب له قبیلې څخه وو چې د طب په علم کې په حذاقت سره منلی دی.

تر ده وروسته حارث ابن کلده ثقفی منځ ته راغی چې د عربو مشهور طبیب د جندی شاپور د مدرسې فارغ التحصیل وو چې د فارس په خوزستان کې مشهور وو تر ده وروسته ابن اومیه تمیمی جراح مشهور دی.

وایي ابن اومیه له عربو څخه لومړی سړی وو چې سرېره پر طب د خپل وخت د علومو او معارف سره آشنا شوی و د پیغمبر دوره درک کړه خو د هغې منکر و له کبله چې دا بو ثفیان سره ئې درلوده مسلمان نه شو او بدر په جګړه کښې مسلمانانو ونیوی او د وژلو فرمان ئې صادر شو.

څرنګه چې ده کوم تالیف او یا شاګرد نه درلود نو دده طب او پوهنه له منځه ولاړه او دده په مړینه سره د طب علم بالکل له عربو څخه ولاړ .

پر عربو باندې یو داسې وخت تیر سو چې طب او جراحي ئې نه درلوده او دا وخت د اسلام له ظهور څخه د اموي دولت تر منځ پوري او بیا سو کله چې د اسلام دائره پراخه سوه او سلطنه ئې خپل لوړ حد ته ورسیده مسلمانانو تصمیم ونیو

چې علمونه له بیلو بیلو لارو څخه وارد او له هرې ناحیې څخه هنرونه زده کړي .

په دې تصمیم کې ئې تر ټولو تر هر شي د طب د علم په زده کړه کې هاندو کړ څکه طبابت داسې پوهنه وه چې تر هر علم ډیر ژر د العرب جزیرې ته راغله .

لومړنی سړی چې د علومو په منځ کې ئې خپله څیر کو ښکاره کړه خالد بن یزید ابن معاویه اموي و چې ده ته ئې د آل مروان حکیم لقب ورکړی و .

خالد د طب د علم او نورو علومو ډیرې برخې چې نوی د العرب په جزیره کې پیدا سوي وه لکه کیمیا او نجوم په عربي ژبه ترجمه کړل او په پنځه اتیایم هجري کال کې مړ سو .

خالد لومړی سړی و چې په اسلام کې په عربي ژبه د نورو کتابو مترجم شو او دده په غوښتنه له رومیانو څخه ډیرو پوهانو (اصطفن) او (ماسرجویه) له فلسفې ، نجوم ، طب او نورو څخه کتابونه په عربي نقل کړل .

ډیر وخت د غسې تیر سو خلافت له بني امیه څخه بني عباس ته ورسیدی او سلطنت ئې له سفاح څخه وروسته منصور ته ورسیدی ، منصور د نجوم د علم سره ډیره مینه درلوده او په هغه ئې ډیر عمل وکړ .

(د ۳ مخ باته)

## سبک څه شی دی ...

طبیعي استعداد خاوندوي او هغه د کار او زحمت په وسیله تقویه نکړي ښکاره ده چې هغه استعداد به یې وحشي پاته شي او کومه ورځ د طبیعي استعداد خاوندان یو او یا نه یو نو نه بنایي چې د تمرین او زحمت څخه آرام کښینو که څه هم مشق او تمرین په لیکلو کښې ضروري او مهم شرط دی مګر هیڅ وخت د طبیعي استعداد جانشین نشي ګرځیدلای ولې کولای سي چې هغه لیکنې ته خوندور کې ډیرو لیکوالو خپل طبیعي استعداد و نه پسله ډیره وخته څخه ښکاره کړیدی لکه (روسو) چې خپل طبیعي استعدادئې پسله څلویښت کاله د کار او زحمت په وسیله تقویه کړ او لوړې درجې ته ئې ورساوه او هر چا به دده لیکنه په ښه ډول مطالعه کوله او کوښښ ئې کوی لکه چې [بوفون] وائي زه هره ورځ لیکنه زده کوم دا نه بنائي چې هره ورځ د لیکنې طرز عوض او تبدیل کړو بلکه باید د کار او کوښښ په وسیله سره هغه خپل زنګ زده استعداد تکمیل او جلا داره کړو هر یو د لویو لیکنو څخه پسله ډیر وخت او ډیر کار او زحمت څخه د یوه خاص سبک خاوند ګرځیدلی دی څو چې په دې کار کښې ئې ډیر پیروان پیدا کړي او اوس نوم ئې ګټلی دی یعنې د لیکنې د طرز ډیر تغیر او تبدیل هم ښه دی بلکه د هغې واحدي (یعنې تکمیل په بنائي چې په نتیجه ورکړي لکه چې (ویکتور هوګو) د یوه رومانتیک سبک خاوند و پسله شپیته کاله تربیې او زحمت څخه ئې ځان تر دې حده ورساوه چې د ټولو خوښ او د لوړ مقام خاوند سو پورته یوه برخه د هغه معلومات څخه ده چې بنائي په لیکنه کښې کومک وکړي .

عطائي

مترجم «منصوری»

# د اعلیحضرت احمدشاه بابا وطن دوستي

دسراج التواریخ کتاب د احمد شاه بابا د سلطنت د ابتدا څخه بیا تر او سه پوري پوره شاهدي ورکوي چي افغاني ټولني د آزادي په لار کښي ځومره سربښندي کړي او د ځومره غټو غټو قوتو سره مخامخ شویدي بیائي هم خپل طبعي خاصیت چي آزادي ده ده د لاسه نه ده ورکړه او تر هغو پوري چي د افغان ټبر په دنیا کي ژوندي وي خپله آزادي به د لاسه څخه ورنه کړي .

ځرنګه چي د دغو فدا کارو او غښتلو پښتنو د خدمت په باره کي ځو کتابه ولاس ته راغلي دي لیکن د نه قدرت په نسبت د هغو ټولو څخه په یوه سره قناعت کوم او ښا غلو ویونکو ته ئي تقدیمه وم .

ټول په پوهیږي چي احمدشاه بابا ځوك و و او د افغانستان و مملکت ته ئي څه رونق و باخښه او د دښمنانو په مقابل کښي ئي د خپلي خاوري د آزادي په لار کي څه ربړونه و ګالل ؟

په (۱۱۶۰) هجري کال کښي تاج پوشي وکړه او په خپل نامه ئي سکه ووهل د اردو تنظیم او ترتیب ئي په ښه ډول سره وکړ او د کندهار څخه ئي غزني ، کابل پیښور ته ولیږل ځو د هغه ځای پښتانه ئي په یوه اتفاق او اتحاد کړل او هغو کسانو ته چي په دي لار کښي ئي مقابلي کولي سخته سزا ورکړه که څه هم د احمدي او سلطاني تاریخ او دعا مري د خزاني څخه ښکاره ده چي د هجري په ۱۱۶۱ کال کښي دلاهور او هندوستان د نیولو په قصد د خپلو منظمو عسکرو سره هغي خواته وخو ځیدی کله چي ولاهور ته ورسیدی د دښمن عسکر د دوی و مقابلي ته راووتلی وه پدی ځای کښي د دواړو خواؤ څخه جنګ په ډیر شدت سره و ونښتی چي په نتیجه کښي د هند عسکر وماتي وکړه توپخانې او مالونه ئي د افغاني عسکر و پلاس ور غلل او د هغه ځای تر تنظیم او تمیدز وروسته و خپل وطن ته د راو ګرځیدی تر یوه کال وروسته اعلیحضرت احمدشاه بابا دریمه پلا د هند وخواته حرکت وکړ او د نادر افشار د متصرفو محکو څخه ئي استفاده کړي د سیالکوټ ، ګجرات او رنګ آبا او امرتسر مالیات ئي د کارکونکو په توسط و کابل ته راورسول .

په بل کال کي بیا اعلیحضرت احمدشاه بابا د خراسان وخواته حرکت وکړ ځنګه چي د خراسان امیرانو کوښښ کاوه چي هرات د خپل مملکت ضمیمه کي لیکن اعلیحضرت احمدشاه بابا هرات په خپل تصرف کي راوستی او تر یو لږ انتظاماتو او ترتیباتو وروسته بیر ته راستون شو .

په «۱۱۶۴» هجري کال کښي دوهم وار بیا اعلیحضرت احمدشاه بابا د خراسان و خواته حرکت وکړ او نیشاپور ئي فتح کی وروسته د باو چستان په سمولو کي لازمه هدایات ورکړه او د مشهد و خواته راو هی شو هغه ئي هم د غه رنګه د افغانستان د خاوري ضمیمه کړی او د هرات وخواته راغلی .

پسله دی احمدشاه بابا غوښته چي د افغانستان په آبادولو کښي کوښښ وکي د علي قلي میرزا د بیانه څخه ښی، وائی کم وخت چي

اعلیحضرت احمدشاه بابا په هرات کی وچی د شاولی خان په مشری یې عسکر و ترکستان ته ولیږل او پخپله نوموړی اعلیحضرت د کندهار وخواته رارهی شو .

کله چی شاولی خان هلته ورسید، میمنه، اندخوی، شبرغان، بلخ بامیان او بدخشان ئی پخپل تصرف کی راوستل او په نوموړو ځایو کښې ئی حاکمان مقـــــرره او پخپله د کندهار وخواته رارهی شو کله چی د اعلیحضرت احمدشاه بابا په حضور مشرف شو دهغه ښه خدمت په اساس چی کړی ئی ؤ د نوموړی اعلیحضرت له خوا څخه د دیوان اعلی د وزارت په رتبه سرلوړی شو .

په ۱۱۶۵ هجری کال کښې څلرمه پلا بیا اعلیحضرت احمدشاه بابا د لاهور وخواته حرکت وکړ که څه هم دهغه ځای مشرانو ئی ومقابلې ته پوره شوی وه خو د دوی ترسر کوبی او آرامی وروسته د کابل له لاری د کندهار ته راغی اعلیحضرت احمدشاه بابا پنځم وار و هندوستان او لاهور ته سفر وکی کله چی ولاهور ته ورسیدی دهغه ځای د ښه انتظام تر کتلو وروسته ئی د ډهلی وخواته حرکت وکړ تقریباً یوه میاشت ئی هلته تیره کړه دده د توقف په وخت کښې

اعلیحضرت دوهم عالمگیر په فرمان سره دوه کروړه افغانی د پیش کش په ډول د اعلیحضرت احمدشاه بابا په خزانه کښې تحویل کړی او هم ئی د اعلیحضرت شاه عالمگیر وریره په نکاح سره وغوښته په دی وخت کښې دده زوی شهزاده تیمور هم دده سره ؤ .

په دغه کال کښې اعلیحضرت احمدشاه بابا د سورجمل جات د ترټنې د پاره و اکبرآباد ته حرکت وکی د سلطانی صاحب دایګنی په اساس د هغه ترد یچی دی و اکبرآباد ته ورسیږی د سورجمل جات مقبوضه ئی فتح کړه وروسته ئی وهغه ښار ته چی د هندوانو پخوانی عبادتخانه وه حرکت وکړ د بتانو ترماتو لو او دهغه ځای تر تارا جو لو وروسته و اکبرآباد ته کامیابه ورسید .

پس له یو څو عمره و ډهلی ته ولاړ او د اعلیحضرت محمدشاه لور ئی په نکاح سره وغوښته د افغانستان وخواته رارهی او خپل زوی تیمورشاه ئی د نائب الحکومه په حیث په هند کی پرېښود .

په ۱۱۷۳ هجری کال کښې چی اعلیحضرت احمدشاه بابا په کندهار کی ؤ یو لوی شور بش د هندوستان د ځینو خانکو او سکانو له خوا پیدا شوی ؤ نوموړی اعلیحضرت د هغو د ترټنې له پاره شپږمه پلا و هندوستان ته رهی شو په دی سنه کښې یو خونړی جنګ و نښتی چی په نتیجه کی شهنشاه بری حاصل کی او ترسر کوبی وروسته دی و ډهلی

او شاه جهان آباد ته راغی په ۱۱۷۴ هجری کال کی تر یو لړ خونړی جنګو وروسته د هندلوی اردو د خپلی مدافعی او سختو حملو د پاره چی په پانی پت کی ترتیبات نیولی وه کله چی مقابله شروع شوه او دا خونړی جنګ څو ورځی مسلسل دوام پیدا کی وروسته اعلیحضرت احمدشاه بابا وخپل اردو ته د یورش امر ورکی او دربیع الاول په دوهمه ورځ مجاربی په ډیر شدت سره خپلی لمبی پوره ته کولی څو چی ئی د هندولوی اردو ته ماته ورکړه .

اعلیحضرت احمدشاه بابا څو چی ئی د هندولوی اردو ته ماته ورکړه

مقابل لودی بلکه ودغ بیا تصمیم نیولی

ؤ چی د پښتنو پر لوی اردو خونی حمله وکی هغه ؤ چی په ۱۱۶٤ هجری کال د جمادی الاخر د میاشتی د ۴ شنبې په ورځ د ټولو قواؤ په ملګری ئی پر پښتنو حمله وکړه .

پدی ځای کښې پښتانه لکه زمریان چی په ښکار پسی ګرزی د تالندی په ډول ئی غړمبی کاوه هغه ؤ چی هندوان (۳۰۰) متره د خپلو استحکاماتو څخه لیری ولاړه پدی وخت کښې پښتانه په تکبیر ویلو سره په تعرض ګوتی پوری کړی

او د دوی د جنګ صفونه ئې یو په بله سره ننه ایستل او څو تنه سرداران ئې ور مړه او د ډېر و نورو څخه ئې سرونه جلا کړه .
او د اردو دغو نو څخه ئې لکه باد و چنګورا او نور ئې په قتل ورسول او د جنګ میدان ئې د دښمنانو په وینو ګلرنګ وګرزاوه .

په دی جنګ کی ۲۲ زره مینځی او مریان ۵۰ زره آسان ۲ لکه غوائې (۵۰۰) د پیل څنځیران او یوزیات شمیر اوښان توپخانی او ډېر جواهرات د غازیانو په لاس ورغلل .

اعلیحضرت احمدشاه بابا د دې لوی او خونی جنګ تر فتح کولو وروسته د ډهلی وخوا ته حرکت وکړ او پس له هغه د کابل له لاری کندهار ته راغی .
اعلیحضرت احمدشاه بابا څه وخت په کندهار کښې ؤ او په ۱۱۷۴ هجری کال کښې احمدشاهی ښار بناء او تعمیر کی ځنګه چی په پنجاب کښې یو لوی بغاوت پورته سوی ؤ اعلیحضرت د هغو د آرامی د پاره دوهم پلا وهندوستان ته سفر وکی کله چی ولاهور ته

ورسېدل (۲) لکه عسکر د هند پر سرحد باندی اجتماع کړی وه اعلیحضرت احمدشاه بابا د دې خبر تر خبریدو وروسته پوره ترتیبات و نیول او په دوو ورځو کی یی ۱۹ کروه لار پری کړه څو چی هغه اجل نیولو ته ئې ځانونه ورسول .

په (۱۱۷۵) هجری کال کښې د رجب په (۱۱) ورځ سخت جنګ ونښت چی په نتیجه کښې د پښتنو غیورو عسکرو د ښکانو ۲۰ زره تنه ئې په یوه حمله سره وخاوروته وسپارل او تر حدزیات اولجه د پښتنو دارنو په لاس ورغله. د دې جنګ تر ختمیدو وروسته ولاهورته ولاړ او یوه ټولی عسکر ئې وکشمیر ته واېږل څو چی کشمیر په خپل تصرف کی راولی ځنګه چی د مځه هم کشمیر د افغانستان تر آثر لاندی ؤ

دوهم وار یی بیا پس له خونی جنګ څخه په افغانستان پوری ومښلاوه او فتح ئې کی .
اعلیحضرت احمدشاه بابا د هند او کشمیر تر رسیدو وروسته وکندهار ته راغی هغه ؤ چی په (۱۱۷۹) هجری کال کښې د هغی فتنه جوئی په نسبت چی په هند او پنجاب کی پېښه شوی وه حرکت وفرمایه

او د دوی تر کرار ولو وروسته ئې خپل مرکز کندهار ته تشریف راوړی .
په (۱۱۸۲) هجری کال کی چی بلخ، بدخشان او نورو ولایتو نو بغاوت وکړی ؤ اعلیحضرت احمدشاه بابا خپل وزیر شاه ولی خان ئې د ۶ زرو سپرو سره هغی خواته ولېږی نو موړی وزیر تر رسیدو وروسته و بوهیدی چی بغاوت د بخارا د حکمران شاه مراد بیګ څخه پورته سوی نو ځکه ئې د هغه خبر واحمدشاه بابا ته واستاوه .
اعلیحضرت د یوه منظم اردو سره د کندهار او هرات له لاری د بخارا وخواته

وخوځیدل کله چی مراد بیګ خبر شو خپل لښکر ئې د مدافعی لپاره د (قرشی) په حد کی چی د جنګ محاذ ؤ ودراوه دلته اعلیحضرت

احمدشاه بابا د اسلامی دین په نسبت د جنګ څخه لاس پورته د صلحی پړی ئې ټینګ او د دواړو مملکتو سرحدئې د جیحون سیند وټاکی .

کندهار ته ئې د راتګ په مسیر کی خرقه مبارکه په ډېر عزت د ځان سره وکندهار ته راوړه .

اعلیحضرت احمدشاه بابا د پنجشنبې په شپه (۱۱۸۶) هجری کال کښې د رجب په میاشت کی وفات سو او په هغه ځای کی چی وصیت ئې کړی ؤ ښخ کړه شو .

ګرانو ورونکو ته به معلومه وی چی د دې مملکت د تاریخ بانی د هغو فداکاریو او

جنګو څخه چی د دې غرنی مملکت لوی او چنی کړی دی ځلانده او ښکاره دی .

پاته په ۱۰ مخ کی

د محمد عظیم هوښمند د عالي دار المعلمین محصل تتبع او لیکنه

# د روانشناسۍ د علم موضوع او روش

د روانشناسۍ د علم منشاء او بنسټ هم لکه د نورو علومو په شان د انسان د کنجکاوۍ او څېړنې د حس نتیجه ده. هغه څېړنې کوم چې انسانانو د خپل پوره پېژندنې او کاملې آشنائي په منظور کړې دي د ا تحقیقات د دې باعث شول چې طبیعي علوم لکه د فزیك علم د نجوم علم او زیست شناسي علم په وجود راغلل کنجکاو انسان کله چې د خپل ځان د پېژندنې په هکله راوګرځیدی نو د روح فلسفه شروع شوه. او د آ د روح فلسفه ورو ورو د روانشناسۍ په علم بدله شوه.

د ابتدائي قبیلو د مطالعې په اثر کوم چې اوس په نړۍ کښې وجود لري، شاید و کولای شو چې د خپلو اولېنو نیکه ګانو د فکر په طرز څه نا څه و پوهېږو نو په هغه صورت کښې و یلای شو چې د هغه شیانو چې زموږ نیکه ګانو به ئې سوچ کاوه هغه د خوب لیدو پدیده وه. هغوی په تعجب کې وه چې څرنګه دوی د خوب په عالم کې لوی لوی سفرونه کوي او په جنګو کښې پر دښمنانو بری موندی همداسې د بیداری عالم هم خپلې شګفتګانې درلودې. مثلاً دغا نه څخه به ئې تپوس او پوښتنه کول چې کوم شی زموږ د سترګو له د ننه د باندنی شیان وینې، یا یې د غوږ په واسطه اوري او یا ئې د پوست په واسطه لمس کوي؟ څه علت دی کله چې سړی کوم شی چې نه غواړي و ئې کړي مګر کوي یې؟ کوم عوامل دي چې انسان د جنګ په وخت کې که څه هم په دې هغه کښې وي چې شجاع و اوسي په لړزه ئې راولي؟ ولې انسان ناګهانه د فعالیت څخه لوېږي او نور حرکت نکوي؟

ډېرو پخوانیو انسانانو د خپل ساده او ابتدایي تفکر په اساس ځینې ځوابونه و پوښتنو مسائلو ته پیدا کړي، هغه دا چه دوی داسې فرضي اټکل کاوه چې په انسان کښې د ننه بل انسان ځای لري چې هغه غیر عادي او نامرئي دی چې بیله د خوب او مړینې په وخت کې نور وختونه د تن په زندان کې زنداني وي. د هغوی په فکر روح او یا نفس همدغه نامرئی انسان دی کوم چې د ده په خپل وجود کښې د ننه وجود لري اما د ا توجیه یو صحیح استنباط نه ؤ، ځکه ده (د ننني انسان فرضیه) تازه مشکلات او لوی سوالونه منځ ته راوستلې اکثره وسنی علمي تصورات د روانشناسۍ د علم د موضوع په هکله د باستاني یونان د علماؤ د فکر زېږندوی دی. هغه څه چې غربي اروپائیان (پسکولوژي) یا (سایکالوجي) بولي د یوناني کلیمو (Psyche) یعنی نفس (روان) او (Loges) یعنی ګفتار په معنی دي، چې ور وسته یې (د نفس د تحقیق، مفهوم واخیست او د نفساني حکمت موضوع وګرځیده.

هغه څه چې موږ ئې نفس بولو د عینو یوناني حکیمانو په نظر انساني دما و یا هوا او اور ته ښبه وه. د نوموړي په نظر دغې مادې په تن باندې حکومت کاوه. افلاطون (۴۲۷-۳۴۷) د عقلي کلیاتو له قوې څخه بحث کوي چې د هغه په نظر ئې د انسان له ذهن څخه مجزا، جدا، او مستقل وجود درلود.

اما د ارسطو اعتقاد (۳۸۴-۳۲۲) د اوسني علمي اعتقاداتو ته نږدې تره دی. نوموړی پدې عقیده ؤ چې نفس یوازې او یوازې د تن د عکس العمل څخه بل څه ندی. ارسطو به ویل مثلاً که فرض کړو چې سترګه جاندار ده نو هغه وخت و یلای شو چې لیدل د هغې د نفس څخه عبارت دي او حقیقت دادی چې لیدل بل څه ندی بیله هغه عمله چې سترګه ئې انجاموي.

د ارسطو په نظر د نفس او تن

د (۹ مخ پاته)

## درو انشناسی...

ارتباط هم همدا شانی دی. دهغه منظوردا ؤ چی د نفس او د هغه د کارو د پیژندنی دپاره باید تر دهغه اندامونه او همدارنګه دهغوی عکس العملونه په پیر دقت سره مطالعه کړو. ارسطو د ذهنی تصوراتو په هکله هم بحث کړیدی اما هغه په نظر دغه تصورات د محیط له تأثیر څخه پرته باندی حاصلیږی.

هغه یدی مفکوره ؤ د چی محیط اشیاء د حس آلات تحریك کوی او دغه د حس آلات د دغه تحریك اثر و قلب ته استوی او دغه تحریکات په زړه باندی چی تأثیرات اچوی هغه ذهنی تصورات دی دغه تصورات یو د بله سره ترکیب کیدای سی او زموږ د اګاهی او خبرتیا منشاد خارجی جهان څخه همدغه تصورات دی چی زموږ په رفتار باندی حکومت کوی.

دارسطو دا عقیده چی نفس د بدنی جریانا تو عکس العمل څخه عبارت دی، ډیر لوی او مهم ګام ؤ چی د روانشناسی د علمی کولو په ساحه کی اوچت شو. نامرئی د ذهنی انسان د علمی مطالعی او تحقیق وړ ګڼل او همدارنګه تصورات هم دا سانی ذهن څخه د باندی تر مطالعی لاندی نشوای راتلای، لیکن په ډیره آسانی سره دا ممکنه ده چی د بدن فعالیتونه تر مطالعی او څیړ نی لاندی و نیول شی او دهغوی ارتباط د تن د ساختمان او دهغه د اعضا ؤ د وظایفو څخه څرګند او پیدا کړو. د دی تحقیق را تلونکی نتیجه دا وه چی کشف شوه چی څرنګه هغه عضوه چی د انسان پر تجربی او اعمالو باندی حکومت اود خصلتلری هغه مغز دی نه زړه. او زړه ییاد ژوند مرکز او حکم فرما دی و ینو کومه لار چی ارسطو پیشنهاد کړه نور نو لازم نه ؤ چی د انسان د پیژندنی لپاره د انسان څخه لیری و لاړ سو. ددی تجربو په نتیجه کی ټولو خیالاتو انسان په باره کی خپل ځان و تحقیق ته دا انسان د ارګانزم په باره کی پر ینښود.

د (۸ مخ پاته)

## اعلیحضرت احمدشاه بابا

ددی خاوری غیرت منو کله دمدا فعی په ډول او ګاهی په تعرض سره دهغو قومانداناو او لوړو شخصیتو تر لار ښوونی لاندی د سرښندنی اوځان جارولو رمزونه زده کړی او دغیرت نه ډك افتخارات ئی دملی نوامیسو د ساتنی اود نن ورځی دزامنو دپاره د یادګار په ډول پری ایښی دی.

ددی دپاره چی مضمون اوږد نه شی شاه محمود شاه اشرف، احمدشاه بابا او نور غیر تمن چی پورته ذکر شول دهغو پښتنو څخه دی چی هر یو ځانته روښانه تاریخ لری دانجیپ تېر د سکندر، چنګیز او نورو متجا وزینو سره د مدافعی په حال کښی ټینګ ولاړ وه او ددغو لوړو شخصیتو د جملی څخه سلطان شهاب الدین غوری او سوری شیرشاه هم شامل دی چی د تاریخ په پاڼو کی ئی نومونه ثبت او روښنکاری

ددی غیور ملت د انحطاط په دوره کی غازی وزیر فتح خان، وزیر محمد اکبرخان، غازی سردار سلطان محمد خان او د اعلیحضرت شهید محمد نادرشاه غازی تر لارښوونی لاندی ددی پاکی خاوری ساتنه کړی او نه ده پری ئی ایښی چی کمه کوچنی ټپلی ددی غښتلی قوم پر مخ پاته سی او د افغانانو د ښمنانو ته ئی دا ښکاره کړه چی ددوی موجودیت هیڅوك د منځه وړ ای نه شی.



ددره نوروال په قلم

# په کلیوالی سیمو کی دولور

## ملاماتونکی پیتی

ولور زموږ داولس دناوړه دودو نو څخه یوه دودی چی ډیری پخوانی زمانی څخه ئی زموږ په اولس کی رواج موندلی دی چی دغه ناوړه دود یوی خوا بشری کرامت پایمالوی د بلی خوا دزیاتو کورنیو دبربادی او پریشانی سبب گرځی .

زمانه ورځ په ورځ تغیر کوی نوی عصر موږ مخ په وړاندی بیایی نو موږ ته لازمه ده چی په خپل عمل او فکر کی اصلاحی بدلون راولو او داسلام په چوکاټ کی داوسنی عصر دټولو تحولاتو او معنوی پرمختگو نو څخه دځان او ټولنی په گټه کار واخلو .

دبده مرغه دولور ناوړه دود تر اوسه پوری زموږ په اولس کی رواج لری په تیره بیا په کلیوالی سیمو کی دولور ملاماتونکی پیتی ډیری کورنی دپریشانی اودربدری سره مخامخ کړی دی دا ځکه زموږ دهیواد په کلیوالی سیمو کی بر لوړو ولور اخیستل عنعنوی بڼه غوره کړی ده اوداده بی ځایه سیالداری او زیاتو لگښتو نو زموږ فردی او اجتماعی ژوند ته زیات معنوی او مالی زیانو نه پیښ کړی دی په کلیوالی سیمو کی پر ـــر نجو نو ولوراخیستل دانسانـــی کرامت او اجتماعی عدالت پـــه خلاف دی دپیسو په بدل کی نجلی بی له خوښی او رضا یوه حیوان په څیر خرڅیږی .

کوم کسان چی دعلمیت او پوهی سویه یی ټیټه او داسلام دمقدس دین دستر وارزښتو نو څخه بی خبره وی نو هغوی بشری کرامت ته هم په احترام او ارزښت قایل نه دی او تر پیسو پوری دخپل خوږ اولاد آینده ژوند ته هیڅ فکر او پاملر نه نه کوی چی ددوی دغه ناوړه سلوک ډیری کورنی دبربادی او تباهی کندی ته اچولی دی په کلیوالی سیمو کی دلوړو ولور اخیستل افتخار او شتمنی بولی اودهرچا دلور یا خورولور چی زیات وی نو دهغو بیا دسیالداری اوواده مراسم او لگښت هم درو ند وی .

په کلیوالی سیمو کی اصطلاح داسی ده چی لومړی ورځ دنجلی دغوښتنی دپاره مرکه لیږل کیږی چی زیات وخت و نه دنجلی مرکه یوا ځی نار ینه وی نجلی لیدلای نه شی چی رنگ ئی څنگه او یا عمر ئی څومره دی یوا ځی دنجلی دپلار اکا یا مشرورو رسره دمرکی خلکټ خبری کوی .

پخپله نجلی یا مور ته ئی پدغه مهمه او حیاتی مسئله کی د مشوری مو قع نـــه ورکول کیږی هر وخت چی دولور پر پیسو ددواړو خواؤ موافقه راسی بیا نو دنجلی دغوښتنی کسان خپل کور ته ځی او دولور دپیسو نیمی یا دریمه برخه برابره وی دنجلی خپلوانو ته آحوال ورلیږی او دنجلی خپلوان خپل نژدی دوستان دغه محفل ته رابولی .

پدغه وخت کی نو دنجلی دور کړی مراسم دسی پـــر ځای کیږی .

دزوم پلار یا اکا دخپل مسجد ملا یا دکلی دملک سره دنجلی کورته ورځی دږ و ډیه خوږلو نه وروسته ددسمال ورکولو په ترځ کښی چی په کلیوالی سیمو کښی ئی

(نور به ۳۲ مخ کی)

[د کندهار مجله ۱۲] مخ

اجتماعی :

احمدشاه (سپر)

# دفکر تکامل

دفکر دقوی اصلی منبع او مرکز دماغ دی او دماغ یوه پر له پیچلی ماده ده چی په سر کی ځای لری او فکر د هم هغی مادی محصول دی .

فکر هم د نور بدن په څیر تقویه کیږی او هم ضعیفه کیږی دمثال په توګه دفکر تقویه کیدل په دی پوری اړه لری چی په څو مره اندازه سره دغه قوه پکار لویدلی او زیات کار ځینی اخیستل سویدی .

لکه څرنګه چی نور وجود دسپورت یا کسرت په سبب تقویه کیږی او دبدن عضلی قوی کیږی همدا ډول دماغ همد ډیر پرکټیس او استعمال په سبب دنور بدن په څیر تقویه کیږی نوکه موږ وغواړو چی ددی قوی څخه په ژوندانه کښی ښی نتیجی او ثمری لاس ته راوړو داراته لازمه ده چی په شیانو کښی زیاته پلټنه او تجسس وکړو او چی دغه پلټنه او تجسس د فکر په کار اچول او دهغه تقویه کول دی .

البته ډیر خلک به داسی مو ند شوی وی چی فکر ئی ویوی ناوړی او لړلی خواته سوق شوی دی او ددی قوی څخه لکه څرنګه چی لازمه وی کار نه سی اخیستلای خو بیا هم ویوی مثبتی یا منفی لاری ته دفکر دقوی سوق کیدل تر ډیری اندازی دیو چا په عزم ، اراده او هغه شرایطو پوری اړه لری چی دی ئی ودی لاری ته ورکش کړیدی د فکر قوه یوه داسی قوه ده چی که مثبتی لاری ته سوق سی .

د مقصد سو او پاکو وظیفو په لارکښی په کار واچول سی د دی قوی څخه داسی نیکمرغه او ښی نتیجی لاسته راځی چی د ټولو د شخصی او اجتماعی ژوند لپاره ګټور ی ثابتیږی او همدا ډول که چیری دغه قوه منفی خواته ورکش سی او په دی خوا کښی په کار ولویږی او د مضـــر و اعمالو په چلو کاټ کښی ولویږی حتماً ئی نتیجی هم دومره منفی وی چی هغه وکړی و شخصی او هم اجتماعی ژوند ته مضر تما میږی .

د فکر قوه یوه داسی قوه ده چی د هغی څخه دعلمی استفادی په اساس بشر د ډیری هوسائی او استراحت وسایل را غونډ کړی او هم ئی دراغونډ ولو په تلاښ کی دی .

د مثال په توګه نن ورځ بشر د خپل فکر د پکار اچولو په ر ڼا کښ برق اختراع کړی ، بی سیم تلګرافئی جوړ کړی

او د په ۱۳ مخ کی

د ۱۲ مخ پاته

## دفکر تکامل

اوس اوس زیات کشفیات نن په برخه شویدي او نور هم دا هیله زیاته موجوده ده

چه بشر به د دغې قوې په مرسته یقیناً هغسې شیان کشف کړي چه ټول مخلوقات

به ئې و شکل او فعالیت ته حیران پاته وي.

دفکر تکامل او پر مختګ ټاکلې اندازه او حد نلري

بلکه په ټولو وختونو کښې دفکر تکامل په نسبتي توګه موجود او د تاریخ په هره-

دوره کښې دانسانانو افکار تر پخوانۍ دورې مترقي او تکامل ته رسیدلي وي.

خو بیا هم د دغه تکامل د ځرګندولو لپاره زموږ په مخ کښې یو معیار موجود دی

چه د هغه په مرسته موږ یوه انسان او یا نوې ټولنې دافکارو د تکامل سطحه

معلومولای شو چه البته هغه معیار هم د اوسنی ساینس او تکنالوژۍ سطحه

ده موږ نن د یوې ټولنې او ټولنې په منځ کې نسبتي تو پیر ځرګندولای شو او د دغه تو پیر د ځرګندیدو په

اثر دا هم روښانه کولای سو چه د دغې ټولنې د وګړو افکار تکامل کړی او یا نه دی کړی؟

دانسان او حیواني جهان ترمنځ د تو پیرونو څخه یو تو پیر دا دی چه انسان کولای

سی په شیانو او پدیدو کې فکر و کړي. و د همدغه فکري استعداد له مخې د

خپل ژوند د پاره ښه زمینه برابره کړي.

د ۱۱ مخ پاته

## په کلیوالي سیمو کې....

ټنې بولي دو لور پیسې د خلکو په مخ کښې د تجلۍ پلار ته ور کول کیږي زموږ

په کلیوالي سیمو کې دو لور د پیسو لوړه اندازه شپېته زره افغانۍ او ټیټه

اندازه ئې دیرش زره- افغانۍ ده.

دلته د یادونې وړ خبره او زموږ اصلي مطلب دا دی

چه د یوې خوا زموږ په اولس کې دولور ناوړه دود او

ملامتو نکي پیټی زموږ د

ټولنې زیاتره کورنۍ د پریشانۍ او دربدرۍ سره

مخامخ کړي دي او د بلې خوا زموږ په ولس کې د

تجلۍ په ډیر کول ور کول یا غوښتل هم د نننۍ عصر او

زمانې دا یجاباتو سره زیات توپیر لري کوم کسان چه

د خپل اولاد را تلونکي ژوند نه

سنجوي او مطلب ئې یوازې داوي چه پر لوړ و لور وا خلي

نو دا سې کسان په حقیقت کې بشري کرامت تر پښو لاندې

کړی او د انساني کرامت او حقوقو څخه سترګې پټوي

او د خپلې ګیلې د ډکولو له کبله پر خپل ګران اولاد

باندې ظلم کوي نو دا ډول کسان کوم چه د خپل اولاد

په سرنوشت لوبې کوي او حقوق ئې تلف کوي د لوی

خدای(ج) او خلکو په نزد سخت مسئول ګڼل کیږي.

نو راسې چه د دغه ناوړه دود څخه لاس وا خلو او

په دې ډول خپل فردي او اجتماعي ژوند د مادي او

معنوي زیان څخه وژغورو

بینوا

# نوی مهال دی

## غوټۍ مسېږي

په رڼو پسرلي دی غوټۍ سوه سپینه    دمینې ږغ ځي له هره بڼه
پر ځانګړ زانګي ژړه خاچینه    په مشو که موږي دوزر بڼه
نوی مهال دی غوټۍ مسېږي
نوی اوبه دي نوی چینېږي
ټکولي ځي سوروسپین ابي دي    د بنو خاچینو باندي اتڼ دي
سیوری د ونو پر مځکه کښي دي    ګلي دچینو بیا سره پڼ دي
زرغوني ونې پاڼې رېږي
نري وږمونه راپورته کېږي
بورا له مني شخه ډېر ژړلی    بڼوال بې ولې پروړلې ولې
پرونو شني دي وني دولي    تراوبولاندي ښکاريږي ولي
مینه دمینې ده څرګندېږي
مین مینه سره جارېږي
تالي سو په سوي ځلیږي مځکې    غاټوي تکې سودسوشني دي ټاټوکی
توري کږدې شوي پر رغو لګي    کږي وږي ځي پیغلې په تله کي
وري سپین مېږي سره ګلېږي
پریزن ورو وروځني اوړېږي
زر کوچکاده کړي بیا سري مشو کي    ککړ ککړ کړي تل وهي کوکي
څوکر بوډ کې کړل دځان مېړو کي    دلمر ړانګي دي دغره په څوکوی
پاس پر ډېرو شېلې شړېږي
زرکي پسو نه باندي الوېږي
پسرلی هغه دی چه ځان يې خپل وي    څوک که په ځاندي چي اد دبل وي
دده هیڅ نوی دنور شل وي    نه ئې پوهنه نه ئې اټکل وي
پسرلی هغه دي چي پښتون ويښ شي
دلمر په څېر ئې پرنړکه بریښ شي
پسرلی هغه دي چي پښتون لوړوي    په پښتنوالي پښتون نوموړي وي
غلیم ئې لاندي تل تر څپړ وي    سر ئې په وینو پسته خپړ وي
د جار جار ږغ ئې پر مینه کېږي
اويوپه بل به سره خوږ يږي



غروال

## سپین ذنبق

سهار دوخته ماهي ګېرانو د يوې ښکلې پېغلې پيکر وليد چې داوبو موجو هغه په خپل غېږ کې نيولى وو. آيا په هغه وخت کښې هغه ناپېژندونکې ښکلې پېغله له کومه ځايه راغلې وه چې د بېنوا او بېچاره او بازانو څخه ئې قبر او ګور غوښت آيا دا ښکلې پېغله يا (د قدرت ارمغان) په هغه درياب کښې په کوم حظ و چاره سوى وه ددې پېغلې ګوتو کښې حلقه نه وه دار نګه پېغله مړه او لګه دې پېغلې غېر د درياب له موجونو څخه بل شى په تن کې موجود نه ؤ لود: کښتى وان او او بازان د خپل کلي په منځ کښې د ښه کفن په لټه رهى سول چې د ښکلې پيکر په هغه سره اراسته کړي د ښکلې پېغلې د تابوت د پاره ئې د سپين ذنبق بوټيونه جوړه کړه د ښکلې پېغلې دا ور پل ليار ه ئې يوه تولى دريابي نجونى راټولې کړې او د هغو مينډى ئې د ژړا لپاره وګمارلې.

د سرو ريګو په منځ کښې ئې ددې ناکامې پېغلې بستر وغوړاوه چې ددې د بدبختۍ د علامو د پاره پر قبر و ابته شنه نشي مګر هغه ګلونو چې مهراوع طقه ئې د ږلوده د درياب په خوږ واوبو د سرو ريګو په منځ کښې د ښکلې پېغلې پر قبر راشنه سول د هغو ګلونو په منځ کښې ترټولو ګلونو يو ډېر رنګين او ښکلى ګل د ناکامې پېغلې پر مزار و ځليدى ښکلو پېغلو تاسى زمونږ د زړونو مچې پاست او عسل مو هغه پاک عشق دئ چې ومو پر ته لې رابخښى.

راشى دا د سپين ذ ن ق ښکلې ګل وګورى د هغه ګل تخم آسماني فرشتو د ناکامې پېغلې پر مزار باشه.

راشى دا ګل بوى کړى دا ګل د ماغ و آسما او نو ته پورته کوى.

**✲**

دشم ژړا

دشم او ښکلې چې را اوري هر ماښام د غم انګښ ته

له حسرته ډک پيام دى، رسوى ئې مړه پښن ته

هغه تو بن چې مې پرى نه کړى، وزر تو ى، سوى نامراد

او س هغه زما قاتل شو، واک مې خپل د ځان بلاد ه

په و يليو مه بهيږمه په ورو ورو مې بيائى خاک ته

چې پرى بل کمو اکه کېږي واک دى نه وائى ها واک ته

د محمد حسين (رحيمي) ترجمه

## دامريکا د ازادۍ مجسمه

دامريکا د ازادى مجسمه چې يو لوى هنرى اثر دى دامريکا خلګو ته زيات اهميت لرى دا مجسمه چې ۳۰۰ متره اوږده او يو اڅى ۰۰۰،۰۰ ۲ پونډه مس پکښې کار سوى دى يعنى څلوېښت کسه کولاى سى چې په سهولت د هغې پر سر ودريږي . مجسمه اوږه و لاړه ده او يو لوى مشعل ئې په لاس کى نيولى دى چې د خور اليرى ځايه ئې خلګ ليدلاى سى.

دا مجسمه د ۱۸۸٦ کال په ۱۹ کتوبر کى د فرانسى خلګو دامريکا خلګو ته اهدا کړه د مجسمې طرح او جوړ ين (اف ګوستى بارتولودى) فرانسوى کړى او د نيو يارک د بندر په کښتنۍ برخه کې پر جزيره ولاړه ده چې په بحر کې د خور اليرى ځايه ښکاريږي په عمومى صورت دا مجسمه د ټولو آهنى مسى او جوړ ين مواد و سره ۲۲۵ ټنه دروندوالى لرى.

د مجسمې اصل قيمت ۲۵۰۰۰۰۰ ډالره تخمين سوى او په بحر کى د هغې د دريدلو له پاره چې په ځاى جوړ ولو کې کوم مصرف شوى دى د هغه تخمين ۳۵۰۰۰۰ ډالر و ته رسيږي په ۱۹۱٦ کال کې د مجسمې ټول اطراف په څراغو نو روښا نه سول د مجسمې ترسر پورى ۳ ٦۰ زينې پورته کيږي د مجسمې د اوږې څخه د لاس ترسر پورى هم تقريباً ۴۵ قدمه نور اوږدوالى لرى

د محمد حسین شیخ زاده خزاعي په قلم

# علامه الحاج شیخ محمد طاهر کندهاری

علامه شیخ محمد طاهر کندهاری هغه عالم و چې محبت و دوستي ئې وحقیقت ته د پېژندنې لار ښوده د ۱۳۴۹ لمریز کال د سلو ا غـې

د میاشتې په ۳ نېټه د ۱۳۹۰ قمري کال د ذی القعدة الحرام د میاشتې په ۲۵ نېټه په داسې حال کې چې د حق طالبانو او د حقیقت د لارې

سالکانو د لوی خدای په درگاه کښې په دعاو مناجاتو سره شپې تېرولې راز او نیاز ئې کاوه د ختیځ د علم

ادب او تقوا په آسمان کې ځلانده ستوري دغه غښتلي عالم علامه زموږ له نړۍ څخه د تل لپاره ستر ګې پټې کړې .

دغه پیاوړی ستر ادیب او نامتو پوه استاد علامه شیخ محمد طاهر کندهاري و چې د اسلام د سپېڅلي دین حقایق ئې د پاک قرآن له مخې ښوول او د مسلمانانو یوالی دوستي او محبت ئې د رښتین دلې په اساس د کندهار په تاریخي مځکه کښې خپاره وه .

رښتیا داده چې دی لوی مجاهد د موهومو اختلافونو او مجهولو ناوړو دودونو د منځه وړلو په لاره کې په لوی جهاد د باندې پیل کړی او د تبلیغ د رنه او مقدسه وظیفه یې په ښه توګه پای ته ورسوله د بې ځایه ځان ښود نې



مرحوم (شیخ محمد طاهر) کندهاری

او بې عمله و چ علم پر مخ ئې ځادر وغوړاوه .

د دې ځای د مسلمانانو په زړونو کې ئې د یووالي او ورورولي زڼې وکرل .

کوم ځای ته چې د دغه خدای بخښلي پوه پښه ورسیدله په علمي دلایلو او تبلیغ سره به ئې د خلکو ترمنځ د هیڅې او ورورولي مزې ټینګې کړې .

د هیواد په دننه او د باندې په بیلو بیلو وګړو کې محققین د دغه خدای بخښلي علامه پر علاقه مندانو چه د هغو له جملې څخه مولوي حاجي شرف الدین اخندزاده

مرحوم خطیب اخندزاده او مرحوم غلام محی الدین اخندزاده او نور پیاوړي پوهان او عالمان وه .

همدغه شان د هرات د ښار د علمي او ادبي عالمانو څخه مرحوم حاجي سـیـد فضل الله او مرحوم استاد مولوي عبدالغفور پایهار او مرحوم زاهد خطیب صاحب د جامع جومات امام

غلام رسول مرحوم ملا محمد صدیق اخندزاده د دغه مرحوم شیخ محمد طاهر د علاقه مندانو څخه وه.

دغه پوه استاد نه یوازې په هیواد کې د ننه ارادت مندان درلودل بلکه تر هیواد د باندې لکه ایران ، عراق شام او افریقا کې هم دده علاقه مندان پر وه .

د نوموړي شیخ خصوصي ذاتي ولایه د پوهنې او روحانیت د خاوندانو سره وه چې د ادب فـلسفې او

الهیاتو ښوونه یې ورته کوله او له همدغه کبله د هرات د عالمانو له خوا ده ته د رسمي استادۍ پیشنهاد وړاندې شو خو ده ونه منله ددغه لوی عالم سره د وطن مینه دومره ډېره وه چې ویل کیږي دی د خپل حج د فریضې د ادا کولو په لار کې د الشیخ عبده محمد جید

السوداني سره ملګری شو هغه غوښتل چې ښاغلی شیخ په سوډان کښې پاتې شي د فیض ښندنه وکړي او په مقابل کښې هر څه چې دده غوښتنه وي ورته برابره کړي خو شیخ صاحب دهغه په جواب کښې وویل په نړۍ کښې

هیڅ شی تر خپل وطن ندی را باندې ګران په هیڅ شان او هیڅ بیه د وطن نوم له ځانه څخه نه جلا کوم .

مرحوم استاد به هر کله اخلاقي اجتماعي دیني او اصلاحي وعظونه کول او د لوی خدای [ج] د کتاب سره سم ئې تبلیغ کاوه .

ددغه استاد ډېره قوي حافظه وه چې دوینا په وخت کې ئې ډېره مرسته ورسره کوله او د ښه وینا او قوي منطق خاوند و .

استاد به خپلو ملګرو ته تل داسې خطاب کاوه:

بیځایه تعصب د خپلو مغزو څخه وباسی او د هغه پر ځای مینه او محبت ته مخ کړی داځکه چې مینه او محبت په زړه کښې نور او

رڼا لا زیاتوي .

مرحوم علامه د رحوم نصر الله زوی او د مرحوم علي ګوهر کندهاري لمسی و چې په ۱۳۱۹ قمري هجري کال د کندهار په تاریخي ښار کښې زېږېدلی او په ډېر کوچنیوالی کښې ئې پلار له لاسه ور کړی و .

دی د یوه غلام علي نومي سړي سره شاګرد و چې نصاب الصبیان ئې هلته پای ته ورسا وه په ۱۳۳۳ کال کښې د تحصیل لپاره ایران ته ولاړ او تر هغه وروسته ئې بیا د تحصیل لپاره عراق ته سفر وکړ

ده دهغه ځای د لویو پوهانو څخه علم زده کړ او د ۱۳۵۴ قمري کال پورې ئې ادبیات حکمت الهیات، د اسلام فلسفه او د پاک قرآن تفسیر او زده کړی ته ئې دوام ور کړ چې د تحصیل دوره ئې په شلو کلو کښې پای ته ورسیدله .

تر تحصیل وروسته بیر ته خپل وطن ته راغی او په کندهار کښې ئې په خپل وعظ او نصیحت باندې پیل وکړ او ډیر شاګردان ئې وروزل .

له بده مرغه په ۱۳۴۹ شمسي کال په دماغي ناروغۍ اخته شو او خوځله د هیواد ډاکټرانو او د باندې کښې تر علاج لاندې و نیول شو په ۱۳۳۷ شمسي کال آمله چې له بغداد څخه هرات ته راغی د هغه ځای علم پالو نکي خلک دده د تدریس څخه بهرمند وو .

په ډېره خواشیني سره موږ ستاسو اغیز د میاشتې په ۴ نېټه واورېدله چې علامه شیخ محمد طاهر ددې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې .

ددغه علمي شخصیت مړینه د هیواد د علم دوستو خلکو د ډېرې خواشینۍ سبب شو موږ ددې لوی شخصیت روح ته دعا کوو او د لوی خدای (ج) له دربار څخه دده لپاره د رحمت غوښتنه کوو .

## د بیلتون درد

تاګور

دا د بیلتون درد دی چې په ټول عالم کښې خپور دی او هم دا درد دی چې په غیر محدود آسمان کې په بیشماره شکلو څرګندیږي ،

دا د جدائي غم دی چې تمامه شپه یو ستوري بل بل ستوري ته خاموشانه ګوري او د جولائي د باران په توره در بله کې ریږدونکو پاڼو تر منځ بدله ځني جوړیږي .

دا خپور شوی درد دی چې عمیق شي نو د مینې په آرزو ګانو تبدیلیږي او انساني ځانو کښې تکلیف او مسرت پیدا کوي، او همدا درد دی چې د شاعر له زړه نه یو سو ځوونکی لحن او سوی نغمه را باسي .

د پخوانيو مصريانو دعقايدو نمونه

مترجم «نيازی»

# د نيل ناوی

دمؤرخينو يوه ډله دنيل درود دناوی يوه حيرت ناکه قصه داسی ليکی :-

چی پخوانی مصريان دځينو عاداتو او عقايدو پابنده وه چی اکثره به ئی د نيل دوفا ورځ چی داورځ ئی دمذهبی عاداتو څخه يوه ورځ بلل کيده تراجراء لاندی نيوله دا رسم او رواج په پخوانيو قصو کښی د( نيل د ناوی ) په نامه ياديږی.

د نيل دوفا په ورځ به ئی يوه ښکلی پيغله چی د بهترينو او ونلو زيورو څخه به وه په ډيرښه صورت آراسته کړی اود (نيل د ناوی) په نامه به ئی د نيل دبی پايانه درياب وخروشانه څپوته ورکوله.

دځينو مؤرخينو په زعم دی نابوده عادت دروما دامپراطور قسطنطين ترزمانی پوری دوام درلود آيا دهغه دلغوه کيدو او باطليدو په باره کی مروته هم شويدی مگر دعرب دمؤرخينو درواياتو څخه معلوميږی چی دا

عادت اوروش دمصر فاتح يعنی د حضرت عمروعاص(رض) ترزمانی پوری جاری و، او ئی يوه ورځ دمصر قبطيان د حضرت عمروعاص رض په حضور را ټول شوی وی ويل :

ای اميــــــره د نيل جاری کيـــدل زموږ يوه طريقه او عادت دی که هغه نه وی جاری کيدل ئی غير ممکن، دی امير وويل څنگه عادت دی؟

دوی وويل کاله چی مياشت لومړی هفته کړی او ۱۲ شپو سره موږ يوه جنه او ښکلی پيغله مور او پلار رضائيت حاصل کړو هغه تجلی د ناوی توب په ښو کالو او سنگينو زيورو آراسته او د نيل درياب ته ئی وړاندی کوو عمروعاص(رض) ورتـــه وفرمايل په اسلام کښی بدعت

نښته اسلام دخپلو ټولو پخوانيو بدو او ناوړو عاداتو رسوماتو اساس او بنسټ وران کړی دی خلگو تر ۴ مياشتو انتظار وکړ اونيل هم هيڅ جريان و نه موند څو د نيل وسيمی نژدی خلک فراره شول او غوښتل نه ئی پری نوول ګله چی حضرت عمروعاص (رض) له دی واقعی څخه خبر شو ټوله کيفيت او واقعه ئی د اسلام و دوهم خليفه حضرت عمر (رض)

ته عرض کړه حضرت عمر (رض) دده په جواب کی ورته وويل چی ډيره کار دی هو اسلام پخوانی غير اسلامی اساس ټول وران کړی دی او دادی ليک می درواستاوه کله چی دروورسيد د نيل و درياب ته ئی واچوه دحضرت عمر ته(رض)فرمان و حضرت عمروعاص (رض) ورسيدو ختی چی پاکټ ئی خلاص کړ او ليک ئی ولوست داسی ليکل شوی وه :

دعبدالله امير المؤمنين له خوا دمصر و نيل ته که چيری تردی وروسته ته په خپل ميل او خواهش رفتار وکړی نوزه ستا تاته حاجت نه لرم که جاری کيدل دی د پاک واحد او قهار خدای (ج) په حکم دی نوزه د هغه قادر خدای(ج)

څخه غواړم چی تا جاری کی خلاصه دمخه تر هغه چی دمصر خلک له خپل وطن څخه وتښتی او تلک ته آماده وه حضرت عمروعاص (رض) پورته ئی ليک د نيل ودرياب ته واچاوه په دا سبا چی خلک په ننه سهار له خوبه څخه را کښينيسل ونی ليدل چی پاک او قادر خدای (ج)

نيل په يوه شپه کښی ۱۶ گزه او به پورته کړی او به ډير شدت سره جريان لری د ښار خلک ټوله خوشحاله شول او تر هغه وروسته ئی د نيل دوفا ورځ او خپل نور بد رسومات او عادات ترک وهل.

د حفيظ الله «صائم» ليکنه او ټولنه

# د پښتنو تعاملي حقوق

## جرګه

جرګه په پښتو کې هغې مهمې غونډې او ټولنې ته وائي چې د يو قومي مشورې يا د قانون د عملي کولو د پاره راغونډيږي .

پښتانه له خورا قديمه وخت څخه په خپل منځ کې ملي قانون او جرګې لري، چې دا تنظيمه قوانين وخت په وخت د پښتنې جرګو له خوا تثبيتيږي .

دا قوانين ټول پښتانه خورا محترم ګڼي .

او کوم نا اهله پښتون چه د هغو څخه غاړه وګرزوي ټول اولس بد ورته وائي او لوی دښمن ئې بولي .

په اوسني اصطلاح سره د پښتنو جرګه هم د يا خه قانون حيثيت لري او هم اجرائيه او قضائيه قوه د دوی په لاس کې وي.

د پښتنو پخوانيو مشرانو به ټوله قومي او اولسي پيښې آو يا د پرديو اولسو سره د نښتې يعني داخلي او خارجي سياست او واقعات به ئې له همدې پښتنې جرګو په واسطه سره حل او فصل کولې .

لکه چې حاجي ميرويس خان نيکه د ټولو قومونو مشران راغونډ کړل او يوه لوقومي او ولسي جرګه ئې دايرانيانو برعليه جوړه کړه هغه ؤ چې خارجيان ئې آخر له خپل ګران هيواد څخه وويستل .

په جرګه کې سربيره پر مشرانو څيني نور کشران هم که لازم وګڼل شي شامليدای شي .

خو د جرګې ټول غړي بايد د قوم منلي شوي کسان وي چې څوک ئې له فيصلو څخه غاړه ونه غړوي او په امنيت او صداقت سره مشهور وي او خيانت سره ئې وی څيني وهلي .

په جرګه کې د يوه سړي نفوذ او اقتدار يوازې نه چليږي بلکه هر څوک آزادانه رايه ور کولای شي .

جرګه بعضې وخت اوږده او بعضې وخت لنډه وي او هر څه چې په کښې حل او فصل شي ژر د عمل جامه اغوندي .

خو لنډه ئې دا چې پښتانه ټوله قومي او ولسي درنې پيښې د همدې جرګې په واسطه سره فيصله کوي .

## مرکه

مرکه اکثر آد مشورې د مجلس او محفل په معنی او تعبير راغلې او پر وختو نه لا د (جرګې) سره هم مترادفه کيږي.

خو د مرکې او جرګې د ومره توپير دی چې جرګه عموماً تر مرکې مهمه او لويه وي او په قومي لويو کارو کې استعماليږي .

کله مرکه د يوې ټولنې حيثيت پيدا کوي يا په بل ډول ځينې سره د (نواتی) د ډلې حيثيت لري .

مثلاً که د يو سړي د بل يو سره څه دلانه پوره نه وي نو دی څو کسه سيدان، خانان، سپين ږيري

او د قوم مشران ور باندې مرکه کوي چې هغه د ده هيله او عذر ومني او د ده تر ګناه ور تير سي او عموماً د کمزوري له خوا کيږي .

او که څوک لور يا خور لري پر داسې کسانو باندې هم مرکه کيږي چې لور يا خور د ده ور کوي، ور ور يا خپلوانو ته ور کې .

لیکوونکی رهبر فاروقی
دالماسو اصلیت او ماهیت

۶

مترجم عبدالقدوس [ن]

# د کوه نور الماس

څخه د نوموړی قصی تفصیل څنی وغوښت شهزاده چه ډیر کم سنه او ډېر وېډو د تمیز و حدته نه وو رسیدلی ټوله واقعه ئی ټکی په ټکی ورته بیان کړه شاه شجاع چه د انګلیسانو و دربار ته ځان ورساوه هغو خوراښه دار و مدار و نسر ه وکی او یو څه پیسی ئی د میاشتی د معاش په توګه ـ ـ ـ ره ور مقرره کړی.

رنجیت ظالم هسی ظلمو ته لاس ور ته کړی وو چه چنګیز ـ هلاکو، تیمور او حجاج مشهور و ظالمانو به شمه د هغه نه وی کړی. په یوه تاریخ کښی لیکلی وه چه شاه شجاع د بندد محافظینو تعداد و څلور و سو و کسو ته رسیدلی و او څی د شپی په څراغ داری باندی ئی شل کسه مقرره وه و خوب ته به ئی نه پری ښوو وی او هر ساعت به ئی اېشولی تیل دده د مخه ـ ره لکوله چه تود وا لی او ګرمی ئی دی بی طاقته کړی ګوندی مجبور ه به شی هغه قیمتی یاقوت او نورالماس چه ور څخه وی رنجیت ته به ئی ور کـ ـړی

رنجیت دا نصیحتم نیولی وو که سره له هومره زحماتو ئی قیمتی جواهرات را نه کړه نو په ډیر زحمت سره به ئی ژوندی او رته اچوم او ایری کوم به ئی او یا به ئی په یوه لوی او سپین قفس کښی اچوم او د خپل ناستون په ور ته چت کښی به ئی ځړوم

د مخه تر تیښتی ئی لسو کسو جلادانو ته امر کړی وو چه ستر ګی ئی په چنګکانو سره و کاږی او لاسو نه ئی ور ـ ـ پری کړی په ماکولاتو کښی به ئی هغه شیان ور کول چه د انسان خوراک نه ؤ.

شاه شجاع څرنګه له بندی خانی څخه ووتی

شاه شجاع خوار چی په دغسی پریشانیو او زحمتو کښی شپی او ورځی سبا کولی دده په دغسی حال

دوستان او نور وفا داره نو کران پاخه وه او تل به ئی کوښښ کاوه چی دده د تیښتی اسباب مهیا کی نو هغه ؤ چی میر ابو الحسن نومی نو کر ئی تقبو نه پیدا

کړی د پټ ئی تر ده پوری ورو رسوله او بل وفا داره نو کر ئی چی حاجی رجب نومیدی دده په عوض کښی د بند ستونزی او زحمتونه پر ځان قبول کړه یعنی دده کالی ئی واغوستله او پر هغه ځای باندی چی دی ناست ؤ کښینستی.

شاه شجاع یاد نوموړی حاجی کالی واغوستله د نقبو په مرسته ئی ځان له بندی خانی څخه داوایستی او د باندی ئی ځان دهندو انو د سادهو په ډول کی هغسی جامی ئی واغوستلی

مری ئی په غاړه کړی ـ ر ئی د هغو په ډول جوړ او یو چوټی ئی د کلکی پر حد باندی پرینبو دی ایری او خاوری ئی پر مخ باندی وپاشلی چی څوک ئی و نه پیژنی

لوبه لکه ئی په لاس کی د اخستله د ابو الحسن خان او میر ابو الطالب خان په ملګری له ښاره ووت د لودهیانی پر لور رهی شو او

دراوی تر سند دېیسو په زور راپوری وتله ځانو نو ئی په ډیر زحمت سره ځان ایستیانیا کمپنۍ ته ورسوله.

په ۱۸۳۹ عیسوی سنه کی چی لارډ آکینلېنډ آمرؤ ا انګلیسانو

روهي

# ساینس او هنر

ځینې هنري کره کتونکي وائي چې د ساینس او هنر ترمنځ توپیر شته مګر د هغو ترمنځ خلیج نشته: هنر او ساینس د واقعیت د سکې دوه مخونه دي. کوم وخت چې د واقعیت پر مخ د ښکلاوو رانګه پریوزي هنر تري جوړیږي. د هنر دغه تعریف هماغو مره چې زموږ آرزووه ښکلې او په زړه پوري دی مګر آیا له تاریخي حقایقو سره هم اړخ لګوي؟ که هنر له واقعیت څخه څه زیات وکم وزه لري سپیره ساینس تري جوړیږي البته ځینې تاریخي تراژیدۍ به استثناوي.

ښایي ځینې کسان اعتراض وکړي چې حتی د تراژیدۍ په لیکنه کې یوازې هغه څه انتخابیږي چې هنري ارزښت ولري لیکن دغه اعتراض وارد نه دی ځکه چې ساینسي واقعیتونه هم د سوچ له لارې انتخابیږي ساینس یوازې د واقعیتونو له راټولولو څخه منځ ته نه راځي که څه هم د دغې واقعیتونو شمیر ملیون هاوته ورسیږي دلته یو (لاس) په کار دی چې واقعیتونه چاڼ کړي او ویې پیژني کله چې موږ هنر وآیو ځینې داسې پوښتنې هم د سړي ماغزوته ورلویږي چې ښه! د موسیقي او واقعیت ترمنځ د رابطې موضوع اصلاً طرح کیدلی شي که نه؟ موږ به داومنو چې (کیوبیزم) د واقعیت د ترسیم د پاره یو «علمي» هڅه ده مګر د (امپرېسیونیزم)، (نیو-کریټیسیزم) او د (موډرنیزم) د ځینو نورو ډولونو په برخه کې څه وائي؟ ممکن د دې پوښتنې یو ځواب په دې ډول وي هغوی چې د واقعیت له بیانولو څخه تیښته کوي واقعیت تری ویل کیږي فقط په هماغه ترتیب لکه ادب چې له بیان څخه زده کیږي البته دا هم یو ډول ځواب دی.

راځئ چې ددې موضوع یوه بل اړخ ته هم لږ څه توجه وکړو.

د ساینس د پرمختګ لار تقریباً مستقیمه ده یوه خښته پر بله باندې خو ودانۍ به انتها نه لري ساینسي واقعیتونه او نظرئي اصلاح کیږي عمق او وسعت ئې زیاتیږي. لیکن هنر یو سرکښ آس دی د زمان او مکان له خوا په اسانۍ سره نشي کنټرولیدلی. د لرغوني یونان بدیعي آثار، شکسپیر، د روس نامتو لیکوال لکه تالستای، چخوف د هنر لوړې څوکې ته ختلي دي، که ستاسي خوښه وي کولی شئ چې د اوسنیو لیکوالو موقعیت له هغو څخه ټیټ وبولئ که تاسي له حافظ، بیدل، خوشحال خان او رحمان بابا سره علاقه لرئ ممکن وکولی شئ د اوسنیو شاعرانو په نسبت چې د سپوږمۍ د تسخیر په عصر کښې ژوند کوي هغو ته په فوقیت قایل شئ مګر د ساینس پوهانو په برخه کښې دا کار نشئ کولی یقیناً آینشتاین له نیوټن څخه زیات پوهیده

نور په ۲۳ مخ کی

[د ۲۰ مخ پاته]

## د کوه‌نور الماس

پر افغانستان باندې حمله وکړه کابل او نور ځي مربوطي علاقي ئې ونیولې مګر پسله دوو کلو څخه انګلیسان په خورا بدحال د افغانستان څخه ووتله .

پای

د «م، ا، ن» لیکنه

# افغانی بدلو ته یوه کتنه

په اوسنی وخت کښې چې په عمومی نظر و افغانی بدلو ته وکتل شی نو په دوه ډوله بدلو باندی ویش قبلوی یو هغه عوامی بدلی دی چې له پخوا څخه زموږ د ژوند په طبیعی جریان کی راغلی دی بل هغه مدنی بدلی چې تقریباً د معاصرو هنرمندانو په الحانونو په زړه پوری زمزمی شروع شوی دی زموږ عوامی بدلی

داسی مثالونه لکه پخپله پوشین شوی بوټی چې دروزنی لاس نی نه وی خوړلی او هر ډول پرهرخوا چې نی وده کړی وی د ماحول له شرایطو څخه چې هر څه متأثر شوی وی خو د چا التفات کار نه وی پکښی کړی نو ځکه دغه نی سبب دی چې په عوامی بدلو کی موله

هر حیثه مرغوب او نا مرغوب آثار یو په بل کی اخښلی تر نظر تیریږی په دی دلیل چې د عوامی بدلو غلط او صحیح مو د ټوله او لس له استعداده څخه نشئت کړی وی او باید ددی دپاره چې د اوسنی استعداده زمزمی و واقعی تاریخ مو

پخپل اصلی شکل کی پاته شی نو لازمه ده چې د عوامی بدلو په هیڅ خوا د و لاس و نه وهل شی او زموږ د نوی موسیقی په ساحه کی داسی وسائل شی لکه یو زوړ شی په موزیم کی پر عوامو بدلو باندی تر ممکنی اندازې پوری باید له تنقیده څان و ژغورل شی ځکه که تنقید پر شروع شی او اصلا حات پکښی عملی شی نو ورورو

هغه رنګ بایلی چې ددی سیمی د مو سیقی تاریخی ارخ دی معرفی کړی زموږ په عوامی

بدلو کی چې کتل کیږی او یا نی ټوله زروښځی وایی نو داټکی پکښی یادو نه جلبوی چې اکثره بدلی چې مو ویل کیږی او څوک نی د غزلو د معانیو و فهمولو ته چندانی التفات نه ساتی او دغه نی سبب دی چې اکثره عوامی غزلی مو وکتل شی نو الفاظ نی په زړه پوری نه وی او یاد کسرت استعمال په دوره

کی نی په مهملو کلماتو څان اړولی وی: مثلا په کندهار کی (با بولاله) ویل کیږی خو څوک نه پوهیږی چې د «با بولالی» معنی څه شی ده په خپله «با بولاله» په پښتو هیڅ معنی نه ورکوی او که په تکلیفی ډول سره «له ببولاړه» یا نورو مشابه الفاظو څخه مقلوب شوی و نه ګڼل شی نو په خپل اوسنی شکل کی خو مهمل کلمات بلل کیږی.

په عوامی غزلو کی همدارنګه په ملتفت ډول سره څوک چندانی ددی خبری رعایت نه ساتی چې د بزم او رزم بدلی پر خپل محل ووائی او یاد مناجات او خرابات بدلی نی پر خپل ځای وی او یا غم و ښادی په بدلو کی سره جلا کړی بلکه هر څه چې هر چاهر چیری وویل خو د چا هم نه ور پام کیږی او نه داسی کار په عوامی

نظر و چا ته بی مناسبته ښکاری، په اوس وخت کښی که یو مدنی هنرمند یو عوامی بدله ووائی نو باید ډیر کوښښ نی په دی کی وی چې هغه له خپلو ټولو شرایطو سره ووائی لکه څنګه چې په عوامو کی رواج وی کم وخت چې داسی

یو بدله ویل کیږی نو که په رادیو کی وی که

په یو محفل کی وی او که بل چیری خو باید تر مخه معرفی کیږی چی دا د پلانی ځای عوآ می

بدله ده او په خپل ذاتی رنګ کی ویل کیږی.
را به سو مدنی بدلو ته داخو هغه بدلی دی

چی تقریبآ زموږ په ژوند کی نی دوره شروع شوی ده په دې ډول بدلو کی مو کافی توجه په کار ده ځکه دا هغه بدلی دی چی زموږ د نوی ارټ

مقدمات تشکیل کیږی او د وروستنی انکشاف دپاره ئی هم د ئه مقدمات په نظر کښی وی.
د دې ډول بدلو د پاره نوم ډا کل مهمه خبره ده یعنی چی د هر هنرمند و هری بدلی ته نوم

ایښوول کیږی مثلاً د «پروینی» مشهوره پسرلنی بدله دی «ګل فروش» و بلله شی او په همدې ډول د هر چا بدله نوم ولری.

بل شی چی په مدنی بدلو کی غوښت غواړی هغه د بدلی واقعیت ور کول دی ځکه په مدنی بدلـــو کښی یـــوازی آواز او آهنګ معتبر نه وی بلکه د بدلی یا د غزلی معانی هم

اهمیت لری او د یلو په وخت کښی ئی خلګ تصور ساتی او په دغه نسبت نو ضروری ده چه د

هر محل بدله او هری بدلی محل د ساز او آواز او غزلی په ټولو مناسباتو کښی پوره و پاڼل شـــی.

په بدله کښی باید داسی نواقص نه وی چه تر هغه بدله وائی چه په واقعی ډول ئی باید ښځه ووائـی او نه بایـد ښځه هـغه بدله ووائی چه په واقعی ډول ئی باید نر ووایی.

مثلاً دا لنډی د نارینه په درانه آواز نه ویل شی.

ولی د لګیږ ولاړ یی یار د لګیږه زه یم چه د پلار د کوره ځمه مثلاً دا ناره بیاد ښځی په لطیف ږغ و نه ویل شی ستر ګی آوری که نر یه او بو له راسه شین خالی.

همدارنګه په خندانه خوله وویل شی چه «چشم ګریان دارم چشم ګریان» او باید د ژړاندو

ستر ګو په لهجه کی دا وویل شی چه «لب خندان دارم لب خندان» مدنی هنرمند: نو په مخ کی

دا ډیره دغور مسئله بولم چه د وی په خپلو بدلو کی تر ممکنه اندازی پوری واقعیت تأمین کړی ځکه هر څو نه چه په بدله کی واقعیت احساسیږی نو

هغو نه د ذوق په نشاط کی وجد انګیزه اغیزی ښندلای شـــی.

لکه د دی عصر په تحریری ادب کی چه واقعیت لازم امر دی دغه رنګه هر څو مره چه نه چه په الحانی ادب کی د واقعیت مراعات وشی هغه د ارټ

پر انکشاف باندی زیات تأثیر اچوی او په دی ترتیب نو کیدای شی چه د ژوند مدنی اړخ له بدوی اړخ څخه ځان جلا کړی او دا ټول بارز

شواهد په ځان کی و بریښوی.
داو زما یو نظر نیغه چه اهل نظر به څه پکښی ووایی.

---

د ۲۱ مخ باته

## ساینس او هنر

نن سبا داسی ساینس پوهان شته چی له دواړو څخه یی معلومات زیات دی ویل کیږی چی د سرمایه داریه د لومړیه دوری لیکوال د وروستنی دورې په نسبت مترقی ؤ او داسی نور.

د دې موضوع یو بل اړخ دارزښتو نو مسأله ده د ساینس قوت د هغی په واقعیت کې پروت دی مګر په هنر کې د بدیعی ارزښت پله د رنه ده ارزښتو نه ترزیاتی اندازی عندی دی اما واقعیتو نه تر زیاتی اندازې آفاقی دی او په اسانی ترې انکار نشی کیدلی بیا هم ستا سو خوښه.

«زېړی»

د م. ی ترجمه

# افغانستان د افغانستان لپاره

د دغه تعبیر پر اړت او د ناسیونالیزم له نظره د هغه اولس لپاره چې د ودې او انکشاف پر خوا ګام پورته کوي حیاتي ارزښت لري .

افغانستان د افغانستان لپاره په دې تعبیر چې د پنځوزرو کالو تاریخ او د تجلید و نکی مدنیت درلودونکی او س په لمړۍ مرحله کې باید د ځان لپاره وي تر څو چې وکولای شي د نړۍ لپاره هم وي .

هر هیواد د کلتور او ثقافت درلودونکی دی چې د زماني او د ځېر پوتیریدل هغه منځ ته راوړي او داسې مشخصات لري چې د وی ته تر نورو هیوادو بېلتون او جلاوالی ور کوي او هغه د خپل تاریخ سره پیوندوي .

لوړ غرونه، شین آسمان او د هغه هیوا د خوندور تاڅوبې چې د پنځوزرو کالو په اوږدو کې د مدنیت ځلورلاری و د هغه په مشخصاتو کې پوره اغیزه لري.

د هر هیواد وګړي د هغو صفتو درلودونکي چې په دوی پورې مربوط تاڅوبې کې روزل کېږي ، وده کوي او د کمال درجې ته رسېږي .

په دغه حساب سره باید افغانستان د افغانستان لپاره وي لازمه ده چې د افغانستان منابع اوبه، خاوره، تېږه ارګی، بوټي ؛ شینلي غرونه، معدنونه او کانونه د افغانستان د آبادۍ لپاره وو لري.

کله چې موږ وایو (افغانستان د افغانستان لپاره ) معنی ئې دا ده چې موجوده وسایل تولیدي منابع ، او سربسته ذخیرې ئې پخپله د افغانستان په دردو خوړل شي او مشکل ئې حل کړي، باید چې له اوبو ځخه ئې د ځمکو د خړوبولو له پاره ګټه واخیستله شي .

انساني قوه ئې د افغاني مشخصاتو درلو د ونکي وي او پښتني کلتور وپالي .

کله چې موږ په دغه تعبیر کې په کږه لاره ولاړ شو او د کلماتو په رد و بدل کښې هغه و نغاړو په دغه صورت کې مو خپل ځان تېر ایستلی دی .

د زماني د لیکوالو ځخه یو تن داسې عقیده لري چې ډېره بده وضعه د یوه هیواد له پاره داده چې لیکوال ئې پر تیارو باندې د رڼا اچولو د ابهاماتو د توضیح د ذهنونو د روښانه کولو او د حقیقت او واقعیت د اظهار او په ځای په باندې د وینا او بیان پر ځای د شخصي ګټې ، د شخصي اختلافونو د شخصي خوابدیو او کج بحثیو له کبله چې خپله خبره نورو ته سمه او ریښتیا و بریښوي ذهنونه مغشوشوي او حقیقت بل ډول ښکاره کوي .

دغه د ذهن مغشوشول او د حقیقت په بله بڼه اړول ساده خبره نه ده دا د خلکو په سرنوشت باندې لوبې کول دي د هیواد د راتلونکي زماني سره لوبې دي، د وګړو د تاریخ او کلتور سره لوبې کول دي او دا ځکه د تاریخ تر قضاوت لاندې راتلونکي دي .

هغه مملکت چې تاریخ او مدنیت لري، روښانه تېره زمانه لري، د پراخو انساني قوه لري او سربسته منابع لري کېدلای شي چې تر رخې لاندې راشي او ستر ګې د هغه د ګټې هیله من وي

موږ افغانستان د افغانستان لپاره غواړو د افغانستان سرلوړی، د افغانستان د لرغوني او تاریخي مدنیت د ژوندي کولو او د دې لپاره چې زموږ اساسي قانون وائي افغانستان ځان ته یو مستقل هیواد دی، خپلواک هیواد باید پخپله د ځان لپاره وي وروسته تر هغه چې د ځان لپاره وګولای شي چې بیا د نړۍ لپاره هم وي او په بشري فامیل (کورنۍ) کې ښه غړی شي .

نور په ۲۵ مخ کې

قمر (اڅکزی)

# ګډ مسئولیت

د انسان ژوند بیل بیل مراحل لري او هره مرحله ومختلفو شرایطو او ایجاباتو ته اړتیا لري کله چې ښځې او ناریینه د تجرد د دورې څخه تیري شي او یو بل سره یې د ګډ ژوند لاس سره ورکی نو دغه وخت دی چې حیات بل شکل

غوره کوي او دواړه د ګډ ژوند او ګډ مسئولیت سره مخامخ کیږي چې هر یو باید په خپل نوبت د کورني ژوند د نیکمرغۍ او سعادت لپاره خپله وظیفه درک او دهغه په اجرا کولو کښې د مسئولیت احساس وکړي .

د پلار وظیفه یوازې دا نه ده چې ټوله ورځ د کور څخه د باندې تیره کړي په دې عنوان چې د کورنۍ معیشت تامین کوي .

بلکه د کور په محیط کی هم د یوه مهربان پلار او د یوه ښه ملګري په صفت وظیفه لري د میرمنې سره د ښه ملګري او ښه مشورې څخه ځان و نه ژغوري د کوچنیانو سره مهرباني ولري او دهغو وړو پوښتنې ته په ورین تندی .

او پراخه حوصله جواب ووایي د کورني محیط کنترول وکړي او کوشش وکړي چې د میرمنې په مرسته دخوشحالۍ فضا خپل کور پر آسمان راخپره کړي .

دغه رنګه مور باید په دې اکتفا ونه کړي چې په کور کی پخلی کوي نور پاکوالی او د کوچنیانو روزنه کوي بلکه لازمه ده چې د یوې مهربانې مور څخه پرته د خپل میړه ښه

مشاوره دغم او مایوسۍ په وخت کښې ښه ملګری د کوچنیانو ښه ښوونکی او بالاخره د کورني ژوند د تنظیم او سعادت د کانون باني

وي، ښه میرمن د کور خوشحالي او نیکمرغي ساتي او تل دا کوښښ کوي چې د نورو خاطر وساتي او دا فکر وکړي چې د کورنۍ د نیکمرغۍ

او بریالیتوب مسئولیت د دې او د دې د ملګري چې د مرګ تر ګړۍ پورې سره یو ځای دي د علاقې او صمیمیت څخه ډک فضا کې سره

واوسي او یو بل ته د مرستې لاس ورکړي په هره برخه کی د ګډ مسئولیت په احساس سره ژوند مخ ته بوزي .

د ۲۴ مخ پاته

## افغانستان د افغانستان ....

هغه مملکت چې د ځان له پاره نه وي، حقوقي شخصیت یې هم نه وي بشپړ، نو کله چې حقوقي شخصیت یې نه وي کامل په بشري لوی فامیل کښې هم یو کامل او رسیدلی غړی نشي کیدلای .

هو کسې مونږ په لوړ آواز دا منو چې افغانستان د افغانستان لپاره زمونږ د نن ورځې لوی شعار دی مونږ هغه وخت تولای

توچې د نورو لپاره واوسو چې د مخه تر هغه د ځان لپاره واوسو .

په دغه باره کښې هر یو ناوړه تعبیرات چپ له دې چې له حقیقت څخه سترګې پټې شي بل کرم شی دی .

ویدغه لار پای ته رسو او له هغه څخه ناچاره هم یو تر ځو چې هغه سر ته ورسوو .

سید حسام الدین «حسام»

# ټینګ عزم او کلکه اراده

## د بشری ژوند د ټولو نیکمرغیو ضمانت کوی

نن که د یوی خوا ترقی او تکامل د بشری ټولنو دا برومند ژوند د بقا ستر قانون او د انسانانو لویه هیله ده خو د بلی خوا بیا د دی ستر قانون او د انسانانو لویه هیله ده خو د بلی خوا

بیا د دی ستر قانون او اساسی لویی هیلی په مخ کښی ډول ډول خنډونه او مشکلات هم وجود لری چه له منځه وړل غواړی دا هم منلی شوی حقیقت دی چه د یوی ټولنی او هیواد د اقتصادی اجتماعی، فرهنګی او نورو اجتماعی او ملی

چارو د سمون په خاطر په اصطلاح نه د اسمانه- څوك را کښته کیږی او نه د مځکی څخه څوك رازیږی چه دا ډول ډول خنډونه او مشکلات له منځه لیری کړی .

خو په حقیقت کی هغه ستره قوه چه د یوی ټولنی او یوه هیواد د پرمختګ او تکامل کاروان د مقصد سر حد ته رسوی په خپله د هغی ټولنی او هغه هیواد ټوله وګړی په تیره بیا ځوانان او پیغلی دی

او هم دا د ځوانانو او پیغلو وجود دی چه د ټولنو او هیوادونو د راز راز لویو لویو مشکلاتو او خنډونو په مقابل کښی د ټینګار او مبارزی

کولو پیاوړی قدرت لری .

خو د دی لپاره چه د یوی ټولنی ځوانان او پیغلی د خپلی ټولنی د وړاندی تګ په هیله په عملی مجادلو کښی پوره بری تر لاسه کړی ورته ښائی

چی د ټینګ عزم او کلکی ارادی ستر احساسات په ځانو کښی را پیدا او هغه پسی وروزی، ځکه ټینګ عزم او کلکه اراده د بشری ژوند د ټولو نیکمرغیو ضمانت کوی . همدا ټینګ

عزمونه او کلکی ارادی دی چی بشر حیرانونکی تخنیکی ساینسی او نور ستر د افتخاره ډك اکتشافات کړی او د طبیعی موانعو او خنډونو له منځه وړلو په غرض ئی بشری ټولنو ته

اختیار کښی ستر وسایل ایښی دی .

ټینګ عزمونه او کلکی ارادی په ټولنو کښی د پرمخ تګ شرایط راغونډوی، وروسته بیا ته هیوادونه اقتصادی، سیاسی اجتماعی فرهنګی، تخنیکی او له نور لحاظه د ترقی او تعالی درجو ته پورته کوی .

په کومو ټولنو کښی چی د ټینګ عزم او کلکی ارادی ونه ځوانه او ریښی ئی د هم هغی ټولنی د ټولو وګړو په تیره بیا د ځوانانو او پیغلو په پاکو مغزو کښی ځای نیولی وی نو ښکاره ده چی د تکامل او وړاندی تګ کاروان ئی به هیڅ کله خپله لاره غلطه او خطا نه کړی او نه به تر شا پاته شی .

د پورته څو کرښو په افاده کولو ټولو ځوانانو او پیغلو ته ښائی چی د تاریخ او د زمانی د غوښتنو سره یو ځای خپلی ټولنی او خپل اولس ته د کار او فعالیت په هیله د ټینګ عزم او کلکو ارادو په تناو ملاوی وتړی .

خپلی مادی او معنوی اړتیاوی د ټینګ عزم او کلکی ارادی د پیاوړو احساسانو په پیروی په ګړندی کوښښ تامین کړی .

هو ځوانان او پیغلی باید په خپله ټولنه او هیواد کښی د ملی جهاد د ستر بیرغ د لوړولو په خاطر د ناپوهی، بیکاری او بی اعتمادی

نور په ۲۸ مخ کی

د روح الله مراد ژباړه

# بوتیچلي د ښکلا ښځو نقاش

د هنر تاریخ به هیڅکله د ایټالیې د رنیسانس پېړۍ نابغه نقاش (بوتیچلي) او د هغه ښکلي او د لیدو وړ تابلوګانې هېرې نه کړي بوتیچلي په نقاشۍ کښې د مخصوص سبک خاوند ؤ، او د هغه په زړه پورې تصویرونو څخه ښکلا او ظرافت په څرګنده توګه ښکاري په فلورانس یا د هغه د زېږېدو په ځای کښې د بوتیچلي آثار او هنري تابلوګانې د بل هر استاد څخه ښې څرګیږي او ډېرې د ښکلو کوټو او د میلمنو د هر کلي د سالون ښکلوونکې دي.

د بوتیچلي په نقاشۍ کښې څه شیان شته دي؟

لومړی د هغه په تابلوګانو کښې ښکلا خوشحالي او د وجود فورم بېله نقصه او په خاص ظرافت سره څرګندیږي. دوهم د هغه د آثارو ښه والی دی چې د ډېرو ټیټو حقایقو ژوندی ویونکی دی او بالاخره د تصویرونو رمز جاذبه قوه ده چې لیدونکی او ننداره چې د ځان خواته راجلبوي.

د دغو صفاتو پوره نمونه د هغه په دريو تابلوګانو کښې: «د ونوس زیږیدنه» «پسرلی» او (پالاس وحشي غواته په قارشو) په څرګند توګه لیدل کیږي د (ونوس زیږیدنه) د مینې ښکلې مېرمن په داسې حال کښې ښيي چې نوې د سیند د اوبو څخه راوتلې او په مستو سترګو د هستۍ نړۍ ته ګوري نرم نرم باد ونه هغه د سیند غاړې ته بیايي او د سیند په غاړه کښې سپیڅلې نجونې د زربفتو د پردې سره د هغې د راتلو منتظرې دي.

بوتیچلي چې په کال ۱۴۴۴ یا ۱۴۴۵ کال زېږیدلی دی، د فلورانس د دوري له اولادې څخه دی. هغه وخت یو هنري پسرلی چې د رنسانس د دورې په نامه مشهور دی د خپل ژوندانه لومړی شیبې تیرولې.

د بوتیچلي اصلي نوم (ساندرو) مخفف دی او هغه د یوې اولاد لرونکې کورنۍ ځوان زوی ؤ هغه په کوچنوالي کښې ډېر ژر په هغه څه شي کښې لاس او مهارت پیدا کړ چې غوښتل یې، مګر له لیکلو، لوستلو او حساب څخه یې کرکه درلوده.

څوموده یې د زرګري په یو هټي کښې کار و کړ؛ مګر ډېر ژر یې زړه له دغه کار څخه تور شو. بوتیچلي د نقاشۍ سره مینه درلوده بالاخره پلار یې چې یو د باغ ؤ، خپل زوی د نقاشۍ د زده کړې د پار، د فلورانس ښار ته ولیږه او ساندرو څو کاله د هنر د استادانو سره کار زده کړه او ښايي چې د هماغه خلکو د ژوندانه آزاده او بې قیده طریقه وه چې بوتیچلي هم د واده څخه کرکه او بېزاري څرګندوله. یوځل یو ملګري د هغه څخه د تجرید سبب پوښتی ؤ، ځواب نقاش وویل: یوه شپه مې خوب ولید چې واده مې کړی دی داسې وېرار شوم چې له خوبه ونښتیدم او تر سهاره په سړکونو ګرځیدم!

د بوتیچلي زیات شهرت د هغو تابلوګانو محصول دی چې د ښځو څېرې یې نقاشي کړي

دې د (صبر) تابلو چې يوه ځوانه مور د خپل
کوچني د لوبو په ننداره بوخته ښيي ، او د
حضرت عيسی او مقدس مريمې څو تابلوګانو
د پنځه ويشت کلن نقاش نوم مشهور کړ هغه
وخت د مديسي د کورنۍ شاهانو پاچاهۍ، قدرت
او شوکت سره د ښار د چارو واګې په لاس کې
درلودې او کوښښ يې کاوه چې د خپل ښار
ظاهري تجملات له لاسه ورنکړي . د لورنزو
چې د مديسي د کورنۍ ستر او مشهور پاچا و ، په
دنيوي لذاتو، شعر او شرابو مين و . هغه د
فلورانس فيلسوفان ، نقاشان ، شاعران او
هنرمندان شا و خوا ته راټول کړي وو او د فلو-
رانس ښار يې د پنځلسمې پيړۍ د روښانه
کلتور او ادب مرکز ګرځولی و د دغو نقاشانو
څخه يو هم (بوتيچلي) و چې لورنزو ته يې ډيره
عقيده درلوده . لکه چې کله يو بل ای د هغه
څخه د (جادو ګر ستاينه) تابلو وغوښته ، بوتيچلي
د مديسي کورنۍ ټول غړي په تابلو کې وښودل
او خپل عکس يې په مينځ کې رسم کړی و .

بوتيچلي يو پلګر وجود ، لوړه پزه او
نرۍ سترګې اوږده زنه درلوده د هغه د شهرت
آوازې سبب شوې چې پاپ (څلورم سيکستوس) هغه
په کال ۱۴۸۱ کښې روم ته وغوښتی . بوتيچلي
هلته د پاپ څو پورتريټونه رسم کړل او د واتيکان
د نوي دواني د پاره يې درې ديوالي تابلوګانې
چې د مقدس انجيل د فرمانو نو څخه يې الهام
اخستی ترسيم کړې او کله چې وروسته له اتلسو
مياشتو بېرته خپل استوګنځي ته راستون شو
د خپلې سيمې لوی استاد و . مګر هغه وخت
فلورانس خپله لوړه دبدبـه لــــه لاسه
ورکړې وه .

د فلورانس او سيدونکو درې کاله د يو
پرهيزګار راهب (سماونارولا) تر ديکتاتورۍ
لاندې له يو ډول نسبتي او احتياطي آرامي
څخه برخورداره وو . مګر پاپ د دغه راهب
د له مينځه وړلو امر ورکړ او خلکو دغه راهب
په ۱۴۹۸ کښې په دار وځـــــړاوه او بيا يې
وسوزاوه .

حساس او ژر رنځيدونکی انسان لکه بوتيچلي
د دغو سختو ورځو زغم ونشو کړی ، نو ځکه يې
د دانتې د (الهي کميډۍ) په مصورولو شروع
وکړه او د نورو قلمي طرحو سره يې د هغه نه يو
اصيل اثر جوړ کړ وروسته له هغه په کال ۱۵۰۱

کښې ګوښه ګير شو . ځکه هغه وخت بوتيچلي
پنځوس کلن وو (ليوناردو دا وينچي) (ميکل آنژ
او رافايل) هغه له صحنې څخه ليرې کړ او نوی
سبک يې مينځ ته راوړ و . بوتيچلي له نقاشۍ
نه لاس واخيست او د عمر وروستي ورځې يې په خپل

وطن کښې تيرې کړې او په کال ۱۵۱۰ کې مړ
شو او جنازه يې د فلورانس په ښار کې خاورو
ته وسپارل شوه .

د ۲۶ مخ باته

## ټينګ عزم او کلکه اراده ....

ځانځاني ، تعصب ، درشوت غلا ، نورو هغو
اجتماعي مفاسدو پر ضد چې هر آن د ټولنې
او ولس ژوند تهديد او د ړنا لوري ته سوق کوي
د ټينګ عزم او کلکې ارادې په غښتلي وسله
په هر ځای او هر وخـــت بايد کښې چــې وي
مبارزه وکړي .

د بشري ژوند په دې حساس کړيو کښې تاريخي
ځوانانو او پيغلو ته دا وظيفه سپارلې ده چـه
د خپلې ټولنې د ټولو خلکو پام او توجه د
خپلو حقوقو ، نيمګړتياوو ، او مسئوليتو ته را
وګرځوي او په اجتماعي مسايلو کښې د افراط
او تفريط څخه په ټينګه ځان ګوښه او اعتدال
مثبته لمن ونيسي او هم دارنګه د شرائطو د تحليل
او درک څخه د هر څه لاس په لستوڼي د غوښتلو
منفي احساسات له ځانه ليرې کړي .

بالاخره ځوانان او پيغلې بايد کوښښ
وکړي چې د علم او پوهې په ګاڼو ځانونه ښايسته
کړي او د دې دپاره ندې تللي پيړۍ د غوښتلو سره
سم د خپلې ټولنې او هيواد د ترقي او تکامل
څرخونو ته نور هم د ټينګ عزم او کلکې ارادې
په مرسته حرکت ورکړي .

له تهذیب البلاغی څخه

عبدالقدوس [ن]

# قل یعمل العامل فی ایام مهله



پاک خدای پر ټولو شیانو باندی احاطه لری او د هر یو ذرې له ټولو اسرارو څخه آګاه دی کائنات ئې د ارادې مغلوب او آسمان

ئې په تقدیر سره ګرځیدونکی دی. تعالی د لوی او خوشی. د ټولو شیانو له پاره نه یاست خلق شوی تعالی تهٔ دی معلومه وی چې د فراغت او تندرستی

زمانه په ژوندکی یو فرصت دی چې باید تر آخیر ئې اندازې پوری استفاده او کار ځینی واخیستهٔ شی ولی چې د عمر چمن تل سر سبزه

او په بهار کښې نه وی یعنی انسان تر پایه پوری ځلمی او مړو چې نه پاتیږی او د زړتوب زمانه یادنا روغی حوادث ورته راتلونکی دی

په دې زمانه کی ئې غریزی حرارت مړ د خوشحالی او نشاط آرزوګانی ئې په زړه کی خاموشه او د سر وږیری

خوشبویه ویښتان ئې د کافور په څیر سره سپین او سړو وهلی وی پاک او مهربانه خدای تعالی د جهالت په

بې بیابان کی سرګردانه نه یاست بری ایښی او د نیک بختی عزت ئې په لاس کی درکړی دی یعنی په دې نړی خوښ چې مخلوق دی په زاپوهی او پوهتوب کښې ژوندو کی او خوږ عمر دی په

ناخبری پاتی مه آهی کی تیر شی نو ځکه ئې پیغمبران مبعوث کړه او هغوی آیه ئې د هدایت د لګیدو نکو شعلو لوحی په لاسو کښې ورکړی چې په هغه سره

ئې ټوله جهان پر سر واخیستی حضرت محمد مصطفی [ص] چې له آخیر نیو برګزیدګانو څخه ؤ د قرآن مجید د بالغه حجت آیاتو نه ئې د ټوله دنیا ته قرائت او دوی

ئې په توحید سره پوه کړه مطلب دادی چې نور شرعیتونه ئې د دغه عزیز کتاب سره تکمیل او د تبه کار یو او خیره سر یو څخه وایول شوه تعالی ته دی دانبکاره وی

چې زموږ محبوب پیغمبر د تبلیغ او فرض کاری وظیفه په ډیر دقت او استقامت سره انجام او ټوله ئې پر سمه لار رهی کړو ای مسلمانانو تعالی ته وایم د صدق وصفالار و ینی او مغزنه مو له زاپاکو خو شو وسوسو څخه

پاک کی بد رویشونه پر مخ پر یږدی او په ظلم ؤ زور پسی نو پسله دی څخه مه ګرزی پوه سئ چې د عمر له زمان څخه سره له زیانانو غیر له لیږیدو څخه نور څه نه دی پاته

شوی ځکه چې غفلت د ناخبری هر څو مره او بد ژوند ډیر ژرختموی او طومار ئې ډیر ژر پیچی .

د سرکش نفس واګی مه سستوی یعنی سرکښه آس که ئې خپله قیزه سسته ولیده مستی شروع کوی او حتماً پور د نیستی او

مذلت و کندی ته اچوی .

هیڅ ګناه کوچنی مه شمیری ولی چې په کراره کراره سره ئې د شرم پرده له حیانا که مخ څخه شیوه کیږی یعنی داناچیزه د

ګناهو د لویو ګناهو په سیند کښې نیستؤ نابود کیږی ای د خدای بندګانو که ځان دوست لری او پاک خدای مو مطلوب دی اطاعت ئې و کی ولی ګنهګار په

د محمد علی ژباړه

# مهاراجا او بنا

په پخوا زمانه کې د مدراس په ښار کښې یو مهاراجه ژوند کاوه تر ټولو مهاراجه ګانو شته من او بډای ؤ .

یوه ورځ مهاراجه په دې فکر کې شو چې د خپلې ماڼۍ په څنګ کې یو معبد ځان ته جوړ کړي .

نو ئې مهندسان او بنایان راټول کړل او خپل خواهش ئې دوی ته بیان کړ .

تر موافقې وروسته په نتیجه کې کار پای ته ورسید او مهاراجه نندارې ته راغی څنګه چې

د دننه معبد په لیدلو ډیر خوښ شوی ؤ هرې خوا ته ګرزیدی او د هغه صفت ئې کاوه کله چې د معبد ګنبدې څخه لاندې وکتل سترګې ئې وتوریدلې ، د زړه تکان ئې په زوره شو ، پښې ئې وریږدیدلې او غړی ئې وتښتیدل -

هر څو مره ئې چې کوښښ وکړ ځان ئې نه شو ټینګه کولای او شیبه په شیبه د ښو رپیږد ئې ډیریدل بنا چې د مهاراجه شا ته ولاړ ؤ پوه شو چې مهاراجه بېریدلی دی نو ور ته نژدې ورغی

او ور ته وئې ویل بناغلی مهاراجا په رښتیا سره چې تر تا بل سړی نه پیدا کیږي . ته ډیر بیریدونکی هم ئې تا ته چا وویل چې پر ګنبد [illegible] باندې پورته شه ؟

کله چې مهاراجه د بنا خبرې واوریدې ډیر په قار شو رنګ ئې تک سور او بښت او بنا پسې ئې په منډو شروع وکړه - بنا د مخه او

مهاراجه په پسې لاړ زینو څخه لاندې کښته شول کله چې مځکې ته ورسیدل د مهاراجه هوښیار مشاور چې له قضیې څخه خبر شو نو ئې وویل

ای بناغلیه - بنا غوښت چې تا له ډیر بو تلو څخه خلاص کړي ځکه چې هغه وخت چې ته ور باندې په قهر شوی ډیره در نه هیره شوه او د بنا پسې

لاندې کښیوتی هغه تا ته په سپکه سترګه ندې کتلی بلکه تا سو لپاره ئې یو لوی خدمت تر سره کړی دی کله چې مهاراجه دا خبری واوریدلې او په حقیقت باندې پوه شو بنا ته ئې یو زر روپۍ بخشش ور کړې .

---

د ۳۰ مخ پاته

## فلیعمل العامل فی....

ته خپل بدکردار سره غیر له خپله ځانه و بل ته نقصان نه رسوی نقصان لیدونکی سوداګر مغبون ندی بلکه په حقیقت سره هغه څوک مغبون دی چې د دین او ایمان ګوهر ئې د لاسه ورکړی وي که تاسی غواړۍ چې خوشبخته او مسعود یاست په ډیر دقت سره له نورو څخه پند و عبرت واخلئ ریا کاران او خود نمایه اشخاص مشرکان بلل کیږي ولې چې لږ ځل په اراده او خلوصیت کښې ور حاصل شي نو لوی خدای د ریا کاری د سجدې په ځای کښې ږدی له بو لهو سانو سره مه کښېنئ له دروغجنانو او منافقانو څخه پرهیز وکئ په رشتیا چې رشتیاویونکی څو مره مورد د اطمینان او بالعکس په دغه اندازه سره دروغجن منفور او منظور وی له حاسدانو څخه لیری ګرزی ولې چې دوی خپل حسد سره پرهیزګاران او عابدان نه [illegible] یعنې حسد هغه اور دی چې ایمان د وچ لرګی په څیر سره په کښې ایری کیږي .

په کینه او عداوت سره هوښ کوی چې د خپل خواږه عمر یوه شیبه ضایعه نه کې او د چا بد و نه غواړی ولې چې بخپله به په هغه بدی سره مبتلا سی .

د آرزو ګانو لمن مه پراخوی ولې چې په پراخې کښې ئې د آرزومند خطر مضره ده او ترمراده پورې نه ور سیږي .

د پښتنې د ۲ مخ باته

## موږ باید خپله ټولنه ....

پوهان او باتجربه مشران چې د ټولنې دردونو د اصلاح کولو پراګرامونه د ځینو مظاهرو له مخه د هغه احساس کولای شي او د غه سبب دی چې یواځې د ټولنې مشران او واقعي پوهان د غوره تدبیرښې لارښوونې او نیک تشخیص د لاری خپلې ټولنې د پرمختګ او عالي هدف پر لور ته رسولای شي .

موږ که څیری په رښتیا د خپلې ټولنې سمون او پرمختګ غواړو په کار ده چې د خپلو خلکو د فردی او اجتماعي نیمګړتیاو او ملي دردونو او واقعي تشخیص وکړو، شرایط او وسایل په نظر کې ونیسو او ټولنه د پرمختګ پر هغسې سالمه او بهترینه لار پر مخ بوزو چې امکانات ئې برابر او بې خطره وي او د ټولنې ذهنیت ئې ومني .

له همدغه ځایه څرګنده دی چې مشرتوب لوړ لیاقت، پراخه حوصله ، تر خپلو شخصي ښیګڼو تیر بدل، د ټولنې د دردونو واقعي تشخیص او فداکاری غواړي او همدغه لوړ شخصیتونه کولای شي چې د پاخه تدبیر د لاری خپلې ټولنې پرمخ بوزي او د ارتقا پر لور ته ئې ورسوي .

زموږ هیواد چې نن د نیکه مرغه د تحول او پرمختګ خواته ګامونه اخلي او د خپل ترقي غوښتونکي او محبوب پاچا تر ستر قیادت لاندي د هیواد په هره برخه کې اجتماعي او اقتصادی اصلاحات کیږي موږ ټولو ته په کار دي چې د خپل هیواد د اجتماعي اصلاحاتو کلک ملاتړ وکړو او په دغه لار کې د خپل ولس اقتصادی امکانات او ذهني شرایط له نظره ونه غورځوو .

موږ ګواه یو چې د دې ولایت د اخبار لیکلو، کلتوري او مطبوعاتي چارو په پرمخ بیولو کې چې د هغو په ښه توګه سرته رسیده نه یواځې زموږ د کندهار یانو د معنوي رشد او اجتماعي شعور په راویښولو کې لوی لاس لري بلکه د هیواد په معنوي پرمختګ او تحول کې هم خپله ګټوره اغیزه ښندي یواځې نه یوا و د کندهار لیکوال، شاعران او پوهان زموږ سره و لاړ او قلمي همکاران دي موږ د کندهار د مجلې په چلولو کې د ښاغلي عالمي «بارک» کوششونه ستایو او هیله کوو چې زموږ حساس لیکوال د خپلې په زړه پوري مجلې سره د پخوانه زیاته قلمي همکاري وکړي او په خپلو تاریخي ، علمي، ادبي او نورو خپرونو او لیکنو سره د خپلې مجلې د نشراتي سویې د لوړولو او د لاری د خپلې ټولنې په معنوي خدمت کې لوړه برخه واخلي (ایوبي)

---

د پښتنې د دوهم مخ باته

## د مجلې د لوستونکو سره ....

د زه شته والي له کبله مې ستاسو د غې معنوي خدمت په زړه پوري توګه سره نه دی رسولي خو د غه حقیقت څرګندول غواړم چې په خپل وس او د غې سیمې د پوهانو او لیکوالو په قلمي مرسته مې وکولای شو چې د مجلې د چلولو د مسؤلیته نه ډکه او درنه وظیفه په ډېره حوصله او فداکاری پرمخ بوزم او اوس چې د اطلاعاتو او کلتور د محترم وزارت په صوابدید د کندهار د مطبعې په وظیفه بوختیږم بیا هم څه توپیر چې د خپلې درنې مجلې سره خپله علاقه وساتم او نه یواځې دا چې د طباعتي حیثه په د مجلې سره خپل اړیکي وساتم بلکه د مجلې په صحافت او داسې نورو کې به هم خپله مرسته ونه سپموم .

باید دغه اعتراف هم وکړم چې زما سره د مجلې په چلولو او مطبوعاتي خدمت کې د اطلاعاتو او کلتور لوی مدیرانو په تیره بیا ښاغلي غلام محی الدین [ایوبي] پوره همکاري کړې او زه ئې اوس په قدردانۍ سره یادوم . په پای کې د مجلې د ګرانو لوستونکو سره د خدای په امانۍ په ترڅ کې د خپل محبوب پاچا تر ستر قیادت لاندي د افغانستان زیاته لوړتیا او هوسایینه غواړم .

«بارک»



دکندهار دکروند ګروېوه ته په هغه وخت چې خپل زراعتي تراکتورونه اوده
هغه ملحقات دهیئت په مخ کې تسلیمېږي